مکمل او مدلل

# د قدر او برائت د شپې مسئلې

## د قرآن او سنت په رڼا کښې

مؤلف:

مولانا محمد رفعت قاسمي

مدرس دار العلوم دیوبند

خپرونکي

مکتبه رشیدیه

سرکی روډ کوټه

بشپړاومدلل

# دقدراوبرات دشپې مسئلې

دقرآن اواحادیثوپه رڼاکې

ددیوبندددارالعلوم دمفتیانوکراموله لورې تصدیق شوې

## مؤلف

ددیوبندددارالعلوم مدرس **قاري رفعت** (قاسمي)

## پښتوژباړه

عبدالرحیم (غیاث)

## خپرونکي

رشیدیه کتاب خانه سرکي لاوډ

کوټه

# دکتاب پیژندنه


دکتاب نوم: دقدراوبرات دشپې مسئلې

مؤلف: مولانارفعت (قاسمي)

پښتوژباړه: عبدالرحیم (غیاث)

دکمپوزاوترجمې چارې: دنورالقرآن ادارې دترجمې اوکمپوزځانګه

کمپوزر: عبدالله (عزام)

تصحیح اوسمون: ابوخالد مولوی عبدالاحد (مجروح)

خپرونکي: رشیدیه کتاب خانه سرکی روډ کوټه

چاپ ځای: لاهور

چاپ شمیر: ۱۵۰۰ټوکه

چاپ کال: ۲۰۰۷ /فبروری میاشت

چاپونکي: محمد ساجد /دګرزنده ټیلفون شمیره /۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴

## ضروري يادونه:

يوازې لوی خدای ﷻ هغه ذات دی چې، ټول کارونه يې په پوره معنی بشپړ او مکمل دي خو انسان هغه ناقص او بې توانه موجود دی چې هيڅ يو کار يې هم بې نمګړتيا نه وي.

ګرانو لوستونکو! که تاسو ته دليکنې، تصحيح، چاپ، جلد سازۍ او دا رنګه په هره برخه کې کومه غلطي په نظر درغله دمهربانۍ او بشري تقاضا له مخې يې موږ ته زموږ په نمبر يا ادرس خبر راکړی. تر څو په دوهم چاپ کښې يې اصلاح کړو. او تاسو ته لوی خدای ﷻ اجر او ثواب درکړي.

د مکتبه رشيديه سرکی روډ کوټه لخوا

فون: 266223 -081

موبائيل: 7825484 -0333

عنوان (ا) مخ

| عنوان | (ب) | مخ |
|---|---|---|

| عنوان | (ج) | مخ |
|---|---|---|

| عنوان | مخ |
| --- | --- |

**اللهم اعنا على ذكرك وشكرك وحسن عبادتك**

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ ۱ وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۲ لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ۳ تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ ۴ سَلَامٌ هِيَ حَتَّىٰ مَطْلَعِ الْفَجْرِ ۵

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ۳ فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ

## تړون

زه خپله دا پلیته د ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها لور ته په خصوصي توګه د سعادت او نیکبختۍ حاصلولو دپاره په سبب د هغه چې دېر اسلامي تعلیمات او د دې مبارکو شپو اعمال ترسره را رسیدلي دي

(محمد رفعت قاسمی غفرله)

## دمؤلف وړاندیز

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على سيد المرسلين وعلى اله واصحابه اجمعين

دالله جل جلاله ثناه ده چې اتم کتاب ( مکمل ومدلل دقدراوبرات دشپې مسئلې ) وکتونکو ته وړاندې کیږي . چې فضائل ، مسائل بې حسابه جزنیات او سنت عملونه دقران اواحادیثو په رڼا کې جمع شوي دي دلوی خدای جل جلاله په فضل او کرم سره دبي وزله داپلتېنه ددیوبند ددارالعلوم دمفتیانو کرامو له نظره تیر شوه او اوس عامو مسلمانانو ته وړاندې کیږي . لویه خدایه جل جلاله تردیرې مودې ددې محترمینو سایه زما له سره مه اخلې . امین

دلوی خدای جل جلاله په دربار کښې لاس په دعاء یم چې دلوی خدای جل جلاله په فضل او کرم سره دمخکنیو کتابو په شان . لکه مکمل ومدلل دجمعې دلمانځه مسئلې . مکمل ومدلل مسائل داخترونو او قربانۍ مسئلې . د اداب او ملاقات مسئلې . داکتاب هم مقبول او نافع په دنیا او اخرت کې وګرزوی او داتوفیق نور هم راکړی . امین

ربنا تقبل منا انک انت السميع العليم

محمد رفعت قاسمی غفرله
ددیوبند ددارالعلوم مدرس
۱۲ جماد الثانی ۱۴۱۲ ه . ق
مطابق ۲ دسمبر ۱۹۹۱

## دلوی خدای جل جلاله په نامه

ګران اومحترم مولانا محمد رفعت قاسمي ددارالعلوم ديوبند مدرس ، دمخکنيو ديني تأليفاتو په شان داکتاب چې دبرات او دقدر دشپې متعلق مسائل يې له ګڼ شمير کتابونو فتاواوو څخه راټول کړي اوپرامت يې احسان کړی ، اميد لرم چې ددې ټولګې په ذريعه سره به دبرات اوقدردشپې نور ناوړه رواجونه ختم شي .خدای جل جلاله دي قبول کړي دامت لپاره دي ګټوره وګرزوي. اومؤلف ته دي الله جل جلاله اوږد ژوند ورکړی ترڅو يې دخدمت سلسله جاري وي ، امين .

العبد محمود غفرله

چهته مسجد دارالعلوم ديوبند ۱۴۱۲ ه . ق

الحمد لله رب العلمين والصلوة والسلام على سيد المرسلين وعلى اصحابه واتباعه التابعين لهم الى يوم الدين . ستاسو په مخکې فتاوی چې دهر شخص لپاره بې شکه ډيره مفيده اوګټوره ده ، ځکه چې له ټولو معتبرو کتابو څخه يې انتخاب شوی دی .لاس په دعايم چې الله جل جلاله دقدرمن مؤلف داکتاب دنورو کتابو په شان مقبول اونافع وګرزوي . امين

فقط .کتبه العبد نظام الدين

رجب(۱۴۱۲) ه ق جنوری۱۹۹۲ع

الحمدلله والمنة چې دمولانا قاری محمد رفعت قاسمی ددارالعلوم
دیوبند مدرس چې یوشمیر کتابونه یې خپاره (چاپ) شوی اهل علم
اوعوامو ته مقبول دي. اوس قدرمن مؤلف ستاسو په لاسو کی کتاب
دبرات اودقدر دشپې مسئلې ) چې له مختلفو کتابو څخه یې احکام.
مسائل اوفضائل راجمع (ټول) کړي. په خپل بشپړ کوشش سره یې
داکتاب هم الحمدلله دتیرو کتابو په شان جمع کړی ما ددې کتاب
مختلف مضامین مطالعه کړل خوښ شوم چې دمختلفو فتاواوو
مضامین اومسائل په ډیره جالبه طریقه سره جمع شوی. هرځای چې
به مې مطالعه کړه ډیر به خوشحاله شوم ډیرې مسئلې چې پخوا می په
ذهن کی نه وی ومې لیدلی. په هر صورت ډیره ګټه می ترینه
واخیسته اوبې اختیاره مې دعاوی ورته وکړي. خدای جل جلاله دې
مؤلف ته له صحت او سلامتیا سره په داسې علمي کار ژوند ورکړی.
اوله دی څخه خواص اوعوام فائده اخیستلای شی.
الحمدلله قاری صاحب لاتراوسه ځوان دي پوره امید لرم چې
دادخدمت لړۍ به یې ډیر پرمختګ وکړي څوک چې داکتاب بشپړ
مطالعه کړي په خوشحالي سره به ددواړو شپو دبرات، اوقدر شپه
دشپې لمانځنې لپاره بشپړه ورتیا ولري همداشان داڅوک به ډیرې
نیکۍ په خپله عمل نامه کښی جمع کړی. کوم چې ددنیا او اخرت
دکامیابۍ سبب ګرزی.
عامو خلکو چې په دې شپو کی کوم ناوړه بدعتې رواجونه رامینځته
کړی. ددې کتاب په ویلو سره به هغه هم ورمعلوم شي اودځان
ژغورینې لپاره به ورته ښه زمینه مساعده وي په هر صورت داکتاب

جامع اومکمل دي هرډول احکام اومسائل پکښې دي .له څوانو
علماؤ ، معاصرو ،پوهانو اوعامو مسلمانانو څخه زما داغوښتنه ده
چې داکتاب ضرور مطالعه کړی ، انشاء الله ددوئ به پوره رهنمایې
وکړی امید دي چې ددې شپو داسې اهتمام وشي څنګه چې حضرت
محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي په اخیر کی دادعا کوم چې
الله جل جلاله دي دمؤلف داخدمت قبول کړی چې ددنیا اواخرت
دکامیابی ذریعه شی .

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمین .

طالب دعا محمد ظفیر الدین غفرله

مفتی دارالعلوم دیوبند

مؤرخه یکم شعبان المعظم ۱۳۱۲ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

حم ۱ وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ ۲ إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ۳ فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ ۴ أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ

سوره الدخان پاره ۲۵

ژباړه: حم (ددې په معنى فقط الله جل جلاله خبر دی) قسم دی په دې كتاب (قرآن) واضح. چې مونږ له لوح محفوظ څخه ددنيا آسمان ته په يوه مباركه شپه كی رانازل كړی دی ځكه چې د شفقت په وجه دخپلې ارادې وبندګانو ته خبر وركونكې وو. ځكه چې زمونږ داخوښه وه چې له ضرر څخه دخلاصيدو لپاره پر خير او شر خبر وركړو. داد قرآن دنازيليدو هدف وو. مخكې ددې شپې دبركتو او ګټو بيان دی. په دې شپه كی دهرې معاملې حكم زمونږ په وړاندې صادريږي او بيا پرهغه ترتيب عملې كيږي. يعنې دټول كال هر اړخيزې معاملې ضرور پر يوه حكمت بناكيږي، پركومه طريقه چې لوی خدای جل جلاله ته خوښه وي. پرهغه طريقه داټول معاملات ترتيب شي. بيا وموظفو ملائكو ته وړاندې شي. له څنګه چې داشپه داسې دقدر وړ وه، او دقرآن كريم نزول هم دلوی حكمت كار وو. نو ددې لپاره يې ځكه داشپه تعين كړه. (معارف القرآن ۹۸مخ ۷ټوک)

په دې هكله دحضرت عكرمه (رح) او دمفسرينو ديوې ټولې دا رأيه ده چې له (ليلة مباركة) څخه دبرأت شپه (دشعبان پنځلسمه) مراد ده. لكه څنګه چې له (فيها يُفرقُ كلُّ أمرٍ حكيمٍ) څخه معلوميږي. له دې تفسير څخه دبرأت (دشعبان دمياشتې دپنځلسمې شپې دخصوصيت لوی فضيلت څرګنديږي.

دقرآن له نزول څخه حقیقتاً نزول ندی مراد. بلکه دنزول فیصله ورڅخه مراد ده . پدې معنی چې مونږ پدې مبارکه شپه دقرآن کریم دنزول فیصله کړېوه او حقیقي نزول د(لیلة القدر ) دقدر په شپه شوی دی.
دبرات په پنځلسمه شپه دټولو امورو فیصله کېږي . له دې څخه ښکاره شوه چې دقرآن کریم دنزول فیصله هم پدې شپه شوېده . ځکه چې دقرآن کریم دنزول څخه بغیر بل کوم لوی او محکم کار کیدای شي.
(فضائل الایام والشهور ۱۰۸ مخ)
دبرات په شپه فیصله وشوه چې دراتلونکي روژې دمیاشتې د قدر په شپه به قرآن کریم نازلېږي . بیا د(لیلة القدر ) په شپه کی هغه نازل شو . ځکه چې عادةً دهرې فیصلې دوې مرتبې وي . یوه دتجویز (وړاندیز) اوبله دنفاذ (عملي کیدو ) . دلته هم دوې مرتبې کېږي. دقرآن کریم دنزول تجویز دبرات په شپه وشو اونفاذ یې دقدر په شپه وشو ، په هرحال دآیة غرض که له (لیلة مبارکة ) څخه هر څه وي. خوله احادیثو څخه ددې شپې برکت او فضیلت معلومېږي. (التبلیغ ۱۴ مخ ۸ ټوک )

## دتسمیې وجه

شعبان له شعب او تشعب څخه مشتق (جوړ) دی . معنی یې جلاوالی او تیتوالی دی. په حدیث شریف کی راځي چې پدې میاشت کې پر روژه نیونکو انسانانو دخدای جل جلاله داسې رحمتونه او برکتونه نازیلېږي ، نرخویې جنت ته داخل کړي . لکه څنګه چې دا میاشت درحمتونو دنازیلیدو میاشت ده نو ځکه شعبان ورته ویل کېږي .فضائل الایام والشهور ۹۹ مخ )

## دشعبان (حروف ) توري

دشعبان پنځه توري دي: ش–ع–ب–ا–ن. له دې څخه هریو پرعظمت او لویې دلالت کوي .ش. (شرافت ) .ع.(علو )لوړوالي .ب. برّ (نیکي

، الف ، الفت ، ن ، نور ، دا پنځه نعمتونه الله جل جلاله بندګانو ته پدې میاشت کی ورکوي. (غنية الطالبين ۳۵۲ مخ)

## دشعبان قدر او ارزښت

هر هوښیار (عقلمند) ته ضروري ده چي په شعبان کی غفلت (سستي) ونکړي او دروژې د استقبال لپاره تیاري په دې میاشت (شعبان) کی ونیسي. له خپلو ګناهونو څخه توبه وکړي. کوم عملونه چې کم شوي وي هغه باید پوره کړي دبرأت په میاشت کی باید لوی خدای جل جلاله ته عاجزي او زاری وکړي. په مطمئن زړه دالله جل جلاله طرف ته رجوع وکړي. دحضرت محمد صلی الله تعالی علیه واله وسلم په وسیله دلوی څښتن جل جلاله څخه رحمت وغواړي، تر څو دهغه زړه پاک شي، او دباطني (پټو) مرضو لپاره باید دوه کاره وکړي. باید دا کارونه ونه ځنډوي او پدې میاشت کی یې وکړي، ځکه چې په حقیقت کی درې ورځې دي: یوه پرون کومه چې تیره شوه دوهمه نن ورځ ده کومه چې دکار کولو ده، دریمه دسبا ورځ کومه چې دامید ورځ ده. او دراتلونکې ورځې هیځ علم چاته نشته چې ژوندی به پاته شي کنه؟

کومه ورځ چې تیره شي باید نصیحت او عبرت ورڅخه واخیستل شي، ننی ورځ باید غنمیت وګڼل شي او راتلونکي ورځ دخطرې ورځ ده چې رابه شي او

کنه؟ همد راز دا درې میاشتې دي: رجب تیر شي او دروژې انتظار کیږي، داهیچاته نده معلومه چې ددې میاشتې (روژې) پورې به ژوندی وي کنه؟ شعبان ددې دوو میاشتو (رجب او روژې) مینځنۍ میاشت ده، پدې کی دلوی خدای جل جلاله عبادت او بندګي غنیمت وګڼه.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضرت عمر (رض) ته نصیحت وکړ چې پنځه شیان تر پنځو مخکې غنیمت وګڼه تر سپین ږیریتوب مخکې ځواني ، تر مرض مخکې روغتیا ، تر غریبۍ (مسکینۍ) مخکې شتمنۍ ، تر مصروفیت مخکې فراغت او تر مړینې مخکې ژوند. (غنیة الطالبین ۳۵۷ مخ)

## برأت او داصحابو کرام کړه وړه (افعال) :

له حضرت انس بن مالک رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې: دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم قدرمنو ملګرو (اصحابو کرامو) رضی الله عهنم. به چې کله دبرأت میاشت ولیده دقرآن کریم تلاوت به یې ډیر کاوو. مسلمانانو به دخپل مال زکوة هم اداء کاوو ترڅو چې مسکینان ور څخه ګټه واخلي او درمضان المبارک دروژې دنیولو لپاره ورته کومه وسیله جوړه شي. حاکم صحابه وو به بندیان راوغوښتل کوم چې به دحد(سزا) مستحق ؤو پر هغوی به یې حد جاري کړ ، او نور به یې خلاص (ازاد) کړل. تجارانو به هم پدې میاشت کې پور (قرض) اداء کاوو. پر نورو به یې چې قرض باندې وو هغه به یې هم په دې میاشت کی ورڅخه وصول کاوو ، درمضان دمیاشتې په لیدلو سره به خلکو غسل کاووا او په اعتکاف کی به کښېنستل. (غنیة الطالبین ۲۵۲ مخ)

## غوره انتخاب :

لوی خدای جل جلاله فرمایي: وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَايَشَآءُ * (۲۰ پاره، ۱۰ رکوع)
کوم څه چې الله جل جلاله غواړي هغه پیدا کوي. او کوم شی چې وغواړي هغه غوره کوي. الله جل جلاله په خپلو مخلوقاتو کی څلور شیان غوره کړو او یویې منتخب کړ. په ټولو ملائکو کی یې څلور غوره کړي: جبرائیل ، اسرافیل ، میکائیل او عزرائیل علیهم السلام بیایې پدې څلورو کی جبرائیل علیه السلام منتخب کړ ، او په انبیاؤ علیهم السلام کی یې

حضرت ابراهیم ، حضرت موسی ، حضرت عیسی علیهم السلام او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم غوره کړل او بیایې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم منتخب کړ. په صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم کی یې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه ، حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه ، حضرت عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه او حضرت علي رضی الله تعالی عنه غوره کړل بیایې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه منتخب کړ. په مسجدونو کی یې مسجد حرام ، مسجد اقصی ، مسجد مدینه (مسجد نبوي ) او مسجد طورسینا غوره کړل بیا یې مسجد حرام منتخب کړ. په ورځو کی یې عید الفطر (کوچنی اختر )، عید الضحی (لوی اختر ) ، عرفه او عاشوری یې غوره کړي. بیایې په ورځو کی عرفه ( دذالحجې لسمه ) بهتره کړه. په شپو کی یې دبرأت شپه ، دقدر شپه دجمعې شپه او داختر شپه غوره کړي بیایې دقدر شپه ترټولو بهتره کړه. مکه ، مدینه ، بیت المقدس او مساجد العشار یې غوره کړل او مکه یې بهتره کړه. په غرو کی یې أحد ، سینا ، ولکام او لبنان غوره کړل او دسینا غر یې منتخب کړ. په دریابو کی یې جیحون ، سیحون ، فرات او نیل غوره کړل او فرات یې منتخب کړ.

په میاشتو کی یې رجب ، شعبان ، رمضان او محرم غوره کړي بیایې شعبان تر نورو بهتره کړه. شعبان ته دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم میاشت ویل شوي ده. لکه څنګه چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پر نورو پیغمبرانو فضیلت لري ، همداراز دامیاشت ( شعبان) تر نورو میاشتو افضله ده. (غنیة الطالبین ۳۵۵ مخ )

له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: شعبان زما(محمد ﷺ ) میاشت

ده ، رجب دخدای جل جلاله میاشت ده او رمضان المبارک زماد أمت میاشت ده. شعبان دګناهو دلیري کولو میاشت ده او درمضان میاشت مسلمانان پاکوي (له ګناهو څخه).
دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمان دی چې شعبان درجب او رمضان ترمینځ داسې میاشت ده چې دهغې دبزرګي (برکت)خلګو ته علم نشته . پدې میاشت کی دخلګو اعمال خدای جل جلاله ته وړاندې کیږي ، نو ځکه زه خوښوم چې کله زما اعمال خدای جل جلاله ته وړاندې کیږي او زه روژه لرونکی یم.
له حضرت انس بن مالک رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وفرمایل : چې درجب میاشت پر نورو میاشتو دومره فضیلت لري ، لکه دقرآن کریم فضیلت پر نورو کتابو همدا راز دشعبان فضیلت پر نورو میاشتو دومره دی. لکه زما(محمد ﷺ) فضیلت پر نورو انبیاء کرامو علیهم السلام او د رمضان فضیلت پر نورمیاشتو دومره ده لکه دالله جل جلاله فضیلت پر ټولو بندګانو. (غنیة الطالبین ۳۵۵ مخ)

## دبرأت دشپې فضیلتونه:

له ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها روایت دی: چې وایې ماله حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چې څلور شپې داسې دي چې په ټولو کي دخدای جل جلاله درحمت دروازي خلاصې وي ؛ دلوی اختر شپه ، دکوچني اختر شپه ، دشعبان مینځنی شپه او دعرفې شپه پدې شپه د الله جل جلاله له لورې دخلګو دعمرونو ، درزق او دهغوی دحج په هکله احکام لیکل کیږي. (غنیة الطالبین ۳۲۲ مخ)
دبرأت شپې ته هم مبارکه شپه وایې چې پربندګانو رحمت ، برکت او دخدای جل جلاله نعمتونه نازلیږي. له حضرت علي رضی الله تعالی عنه

څخه روايت دی چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چې دشعبان په مينځنۍ شپه کی ددنيا او آسمانو خلگوته دالله جل جلاله حکم کيږي ، هرمسلمان ته بخښنه کوي ، بغيرله مشرک، کينه کونکي صله رحمي قطع کونکي او زانيې ښځې څخه. (غنية الطالبين ۳۵۹ مخ)

له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چې له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وشوه چې په روژو کی کومې روژې ښې (بهترې) دي ؟ حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چې دشعبان روژې چې درمضان المبارک دروژو د درناوي لپاره وي حضرت عائشة رضی الله تعالی عنها وايې چې دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم په نزد دشعبان ډيره خوښه ده ځکه چې دا رمضان المبارک ته نژدې ده.

له حضرت عبد الله رضی الله تعالی عنه څخه ورايت دی چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وفرمايل: کوم شخص چې دشعبان دآخيري دوشنبې روژه ونيسي ؛ الله جل جلاله دهغه ګناه وربخښي ، يائې د دې مياشتې اخيري دوشنبه. داسې نه چې ددې مياشتې اخيري ورځ ځکه چې دعامو خلګو لپاره د رمضان المبارک څخه يوه يادوي ورځې مخکې روژه نيول منع دی.

له حضرت انس بن مالک رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی: چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چې ددې مياشتې نوم يې ځکه شعبان کيښود چې پدې کی ډيرې نيکۍ تقسيمږي ، او درمضان المبارک نوم يې ځکه کيښود چې پدې کی ټول ګناهونه سوځل کيږي. (غنية الطالبين. ۳۵۴ مخ)

## دبرأت دشپې ځانګړتياوې:

دبرأت دشپې ځانګړتيا داده چې پدې شپه کی له ماښام وروسته دالله جل جلاله تجليات او توجهات ددنيا آسمان ته راځي (رالوزيږي).
او عام اعلان کيږي چې ايا کوم دبخښني غوښتونکی شته چې زه بخښنه ورته وکړم. اياکوم دروزۍ (رزق) غوښتونکی شته چې زه رزق ورکړم اياکوم مصيبت ځپلی شته چې زه ساتنه ورکړم. ،ايا داسې څوک شته؟
غرض داچې ټوله شپه دلوی خدای جل جلاله درحمت دربارخلاص اود عامي بخښني باران اوري ترڅو چې سپيدې راچوی (صبح صادق) او وروسته دا دربارتړل کيږي. که څه هم دا دربار ټول کال هره شپه خلاص وي هغه يوازې دشپې تر وروستی برخې پورې خاص دی. ددې شپې فضيلت دادی چې دلوی خدای جل جلاله درحمتونو دربار له لمر لويدو څخه شروع او تر سپيده داغه دوام لري. داهغه شپه ده چې پکی رحمتونه نه تقسيمېږي ، بلکه پوره پوره ونډه ورکول کېږي. لکن افسوس څومره نېکبخت دی هغه څوک چې له دې ونډې څخه برخه من شي ..... شايد چې په سلو(۱۰۰٪)کی به يو يادوه هم وينښ نه وي ؟
ددې مياشتې له نورو ځانګړتياوو سره سره يوه ځانګړتيا دا هم ده چې څوک په آينده (راتلونکي) کال کی مړکېږي. پدې شپه کی يې دمرګ نيټه معلوميږي. نو پکار ده چې ددې مياشتې له ځانګړتيا سره سره په ښه عبادت مشغول شي ترڅو يې دژوند پرېکړه (فيصله) په داسې وخت کي وشي چې په عبادت کی بوخت (مشغول) وي.
حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها له نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې ته په شعبان کی ډيرې روژې نيسې. ددې وجه څه ده ؟
حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ورته په ځواب کی وويل چې: پدي مياشت کی لوی خدای جل جلاله دهغه چا نومونه ليکي چې په راتلونکي

کال کې مړ کيږي ، زه غواړم چې زما دمرګ ليکنه په داسې حالت کې وشي چې زه روژه لرونکی يم. له دي څخه اشارهٔ معلوميږي چې دچاد مرګ فيصله پداسې وخت کې وشي چې هغه په عبادت کې بوخت (مشغول) وي. له الله جل جلاله څخه ډير اميد ده چې ددې مرګ به هم دعبادت په حالت کې وي او انشاء الله خاتمه به يې هم په خير اوبرکت وي. (فضائل الايام والشهور ۱۰۴مخ)

## دامتحان (ازموينې) نيته

عن اسامه بن زيد رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم شُعْبَانُ شَهْرِيْ وَ رَمَضَانُ شَهْرُ الله.

ژباړه :له حضرت اسامه بن زيد څخه روايت دی: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: شعبان زما او رمضان المبارک دالله جل جلاله مياشت ده.

**تشريح** : شعبان ته محمد صلی الله عليه وسلم خپله مياشت ويلې ، او خپل لورې ته دي منسوبه کړی له دې څخه وروسته دشعبان دمياشتې دنورو فضائلو بيان ته اړتيانشته ځکه چې کومه مياشت دمحمد صلی الله عليه وسلم وي دهغې برترې او بهترې څرګنده ده . ددې مياشتې يوه ځانګړتيا داده چې پکی دبندګانو دټول کال عملونه (کړنې) دخدای جل جلاله حضورته وړاندې کيږي ، لکه څنګه چې دمحمد صلی الله عليه وسلم قول دی چې دشعبان مياشت کومه چې درمضان او رجب مېنځنی مياشت ده ورڅخه غافل دي خوپه هغې کی دټولو بندګانو اعمال دخدای جل جلاله حضورته وړاندې کيږي ، ځکه زه دا خوښووم چې پداسې حالت کی چې اعمال خدای جل جلاله ته وړاندې شي چې زه روژه لرونکی يم.

(رواه البيهقی فی شعب الايمان)

مونږ په عامو مدرسو، ښونځیو او ټولو تعلیمي ادارو کی وینوچې زده کونکې په ټول کال کی چې زړه یې غواړي هغسې ګرزي. خوچې کله دکال په اخیره کی دټول کال دتعلیمي امتحان ( ازموینې ) وخت رانژدې شي ،له ټولو څخه بې استعداده ، بې شوقه او بې محنته (کوښښه) طالب العلم هم دټولو کتابونو په تکرار او زده کړه بوخت وي. غرض داچې دانسانې فطرت تقاضأ ده چې کله دکوم کار دنتیجې (پایلې) وخت راشي ټوله توجه یې همدې لور ته وي. همدا راز اعمال دي ، دادنیا دانسانانو دهمیشني ژوند ځای ندی انسانان به یکی دتل لپاره نه وي ، دالکه یو هوټل یاسرای دیوې ،دوو یاڅو ورځو دمسافرانه ژوند لپاره ده.

د « **الدنیا مزرعة الاخرة** » مشهوره مقوله خوبه تاسو هم اوریدلي وي ، ددې مطلب همدادی چې الله جل جلاله انسان دڅو ورځو دامتحان لپاره دې دنیاته رالیږلی دی ، چې وګوري چې څنګه عملونه کوي ، خپل عاقبت سموي ، که یې خرابوي. داسې هم نه ده چې الله جل جلاله انسان دې دنیاته هسې رالیږلی دی ، بلکه هرکال دتیر وخت عملونه کتل کیږي. او دراتلونکي کال لپاره نوی ترتیب نیول کیږي. دبرأت میاشت دامتحان میاشت ده ، پدې کی دټول کال عملونه خدای جل جلاله ته وړاندې کیږي او دراتلونکي کال حکمونه صادریږي. په تیرشوي حدیث کی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم خپل اُمت ته ددې نکتې (باریکۍ) لارښوونه وکړه چې دا میاشت دتیرو اعمالو دنتیجې میاشت ده ، نوپه ځانګړي دول باید نیک (ښه) اعمال وشي ، لکه څنګه چې دنورو ازمینو (امتحانو) لپاره هلې ځلې کیږي باید پدې امتحان کی هم بشپړ کوښښ وشي ترڅومخکې غلطۍ پوره شي او دکامیابۍ لورته دې مخ شي ، داسې نه چې یوازې محمد صلی الله علیه وسلم قول کړی ، بلکه خپله یې عبادت هم

کړې او یو عملي تصویر یې زمونږ مخ ته ایښئ. له ګڼ شمیر احادیثو څخه معلومیږي چې محمد صلی الله علیه وسلم په کومه اندازه په شعبان کی ډیرې روژې نیولې دي له رمضان څخه سوا داخصوصیت بلې میاشتې ته نه ؤ حاصل. له ځینو روایتو څخه معلومیږي چې محمد صلی الله علیه وسلم به ټوله شعبان روژې نیولي کله به چې روژه راغله هغه به یې هم پیل کړه.

ددې لپاره چې امت یې کمزوری او له رمضان المبارک څخه بې برخې نشي ددې اجازه ورکړل شوه چې دشعبان په لومړۍ نیمایې کی روژې ونیسي او به نصف اخرکی استراحت وکړي چې دروژې (رمضان المبارک) لپاره تکړه (زورور)شي. دبشپړ شعبان دروژې دممانعت وجه ضعف ده چې درمضان په روژو کی کوتاهي ونکړي، ځکه که څوک زورور او تندرست وي ددې وس (طاقت) ولـــري چې دوې میاشتې پیوست روژې پرې کوم اثرنکوي اوصحت ته یې کوم زیان نه رسیږي. نو ورته رواه (جائز) ده چې دشعبان او رمضان میاشتې مسلسلې روژې ونیسي. دمحمد صلی الله علیه وسلم دقول او فعل ترمینځ تعارض نشته قول یې دامت لپاره او عمل یې دځان لپاره. (فضائل ایام والشهور ۱۰۳مخ)

## دبرأت شپه څه ده؟

داسلام دمقدسې عقیدې (توحید) له مخې دزمانې هره لحظه ،ساعت، دقیقه شپه او ورځ هره شیبه مبارکه او غوره ده په کومه لحظه کی دبې کاره او شر تصور داسلام خلاف کار دی، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دحدیث قدسي په واسطه ددې حقیقت انکشاف (څرګندونه) کړی ده چې دزمانې هرې لحظې ته ناخوښ او بدویل منع دی، ځکه چې زمانه په حقیت کی دالله جل جلالـه دشان نوم، او الله جل جلالـه دبرکت ،نیکبختۍ، سعادت فضیلت او بهترۍ په وجه دکومې میاشتې پر بلې میاشتې دځینو

ورځو پر نورو ورځو ، یا شپو پر نورو شپو ، آن دځینو ساعتونو پر نورو فوقیت او بهتري حاصله ده. او ددې قسم فوقیت او فضیلت دقرآن او حدیث په ذریعه ثابت دی. دکوم چې فضیلت بهتري او خواصې په قرآن کریم کی بیان شوی او په نبوي احادیثو کی هم بیان شوی دی داسې دي:
دمعراج شپه ، دبرأت شپه ، دقدر شپه او داخترونو شپې قرآن کریم دبرأت شپې ته (لیلة المبارکه) ویلې کومې ته چې حدیث شریف لیلة البرأت ویلې ده. او زمونږ په اصطلاح کی دبرأت په شپه مشهوره ده. دبرأت معنی په عربي ژبه کی دخلاصون او نجات ده. او دا داسې شپه ده چې الله جل جلاله دزیات شمیر انسانانو ګناهونه بخښي او دجهنم (دوزخ) له عذاب څخه یې خلاصوي. ځکه یې ددې شپې نوم لیلة البرأت (دبرأت شپه) کېښود.
بله دا چې پدي شپه کی دانسان دژوند او دهغه دارتیاؤ دیوه کال لپاره فیصله کېږي. او دامبارکه شپه دشعبان دمیاشتې پنځلسمه شپه ده کومه چې دخوارلسم تاریخ له ماښامه شروع کېږي بیاتر صبح صادقه پورې.
ددې شپې شرعي حیثیت دومره دی چې دبرأت شپه یوه سپېځلې (مقدسه) شپه ده. پدې شپه کی به نبی کریم صلی الله علیه وسلم له عادت څخه زیات عبادت کاؤ. اودمړیو دمغفرت ددعاؤ لپاره به هدیرو ته تللي ، په دوهمه ورځ به یې روژې نیولې. دادبرأت دشپې دلمانځني اصل طریقه ده چې پدې شپه کی ترټولو زیات عبادت وکړي دخپلو ګناهونو دبخښني دعاوي وکړي اوهدیرې ته ولاړشي دسنت طریقې مطابق دخپلو پلرونو، نیکونو ،دوستانو، قریبانو او عامو مسلمانانو دنارینه اوزنانه لپاره دبخښنې دعاوې وکړي او په راتلونکې ورځ روژه ونیسي. (محمدرفعت "قاسمي")

## دجبرائیل علیه السلام راتګ:

له حضرت ابو هريرة رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چې د شعبان په مينځنۍ شپه کی حضرت جبرائيل عليه السلام ماته راغلی او ويې ويل: ای محمد صلی الله عليه وسلم ! خپل سر د آسمان لورته پورته کړه، ماهم سر پورته کړ آسمان ته مې وکتل. د جنت ټولې دروازې خلاصې وې په لمړنۍ دروازه کی يوه ملکه ولاړه وه ناري يې وهلې چې کوم شخص پدې شپه کی رکوع (لمونځ) کوي هغه ته دې زيری (خوشخبري) وي په دوهمه دروازه کی يوې ملکې ناري وهلې چې څوک پدې شپه کی سجده کوي هغه ته دې زيری وي.
په دريیمه دروازه کی يوې ملکې ناري وهلې چې کوم شخص پدې شپه کی دعا کوي هغه ته دې زيری وي په څلورمه دروازه کی يوې ملکې ويل چې پدې شپه کی څوک ذکر کوي هغه ته دې زيری وي. په پنځمه دروازه کی يوې ملکې ويل چې څوک پدې شپه کی دخدای جل جلاله له ويرې ژاړي هغه ته دې زيری وي. په شپږمه دروازه کی ملکې ويل چې پدې شپه کی ټولو مسلمانانو ته زيری دی. په اومه دروازه کی ملکې ويل چې که څوک څه غواړي (غوښتنه به يې پوره شي) په اتمه دروازه کی ملکې ويل که څوک د مغفرت (بخښنې) سوال کوي، سوال به يې قبول شي.
حضرت محمد صلی الله عليه وسلم فرمايي: له جبرائيل عليه السلام څخه مې پوښتنه وکړه چې دا دروازې به ترکومه خلاصې وي؟ ځواب يې راکړ چې د شپې له لمړنی بيا ترسپيده داغ (صبح صادق) پورې، بيايې وفرمايل: ای محمد صلی الله عليه وسلم ! پدې (دبرأت پنځلسمه) شپه کی الله جل جلاله د دوزخ له اوره دومره خلک خلاصوي څومره چې دبني کلب د بوزو وينښتان دي. (غنية الطالبين ۳۲۲ مخ)
په عربو کی د هرې قبيلې ډيرې بوزې وې خو د کلب قبيلې ډيرې زياتې وې.

ددې ټولو بوزو پرصورت (بدن) باندې چې څومره ویښتان دي له دې څخه زیات شمیر مسلمانان د دوزخ له اوره څخه خلاصیږي. (له دې مثال څخه هدف ډیروالی دی چې دیوې بوزې څومره ویښتان وي او د داسې بې حسابه بوزو به څومره ویښتان وي چې له دې څخه هم زیاتو کسانو ته لوی خدای جل جلاله مغفرت کوي. (محمد رفعت «قاسمي» غفرله الباري)

## دبرأت شپه ولې مبارکه (سپېڅلې) ده ؟

کومه شپه چې راتلونکې ده (د شعبان پنځلسمه) ددې په هکله ډیر فضیلتونه راغلي دي. نو ځکه ورته مبارکه شپه ویل صحیح ده، که څه هم په احادیثو کی د مبارک لفظ ندی راغلی لکن په قرآن کریم کی راغلی دی. که څه هم داتفسیر متحمل دی خودې شپې ته دمبارکې لقب ورکول کوم تاوان نه لري ځکه چې برکت په حقیقت کی کثرت نفع (ډیرې فائدې) ته وایې. نو چې د کوم شي ډیره فائده ثابته وي نو مبارک ورته ویل صحیح دی. کوم فضیلتونه چې په احادیثو کی ددې شپې راغلي دي زیاته نفع (فائده) ور څخه ضرور ثابته ده نو مبارکه ورته ویل صحیح ده. ګواکه دمبارک لفظ ندی راغلی، لکن په قرآن کریم کی آیة دی:

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ۳ فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ

ژباړه :- مونږ داقرآن په یوه برکتناکه شپه کی نازل کړی، بېشکه چې مونږ بیرووونکې یو. پدې شپه کی دهر امرحکیم (د حکمت کار) فیصله کیږي.

یعنې داهم یو برکت دی چې پکی دټولو کارونو فیصله کیږي. په ټولو امورو کی ټول شیان داخل دي یوازې لمونځ او روژه نده. بلکه ددنیاکارونه هم پکی شامل دي. دمثال په توګه دیوه کښت به دومره حاصلات کیږي ،جنګ به کیږي ،بری (فتح) یا ماتې به کیږي. دونه او به به وار وي ،دمرګ ،ژوند ،کوزدې ،واده (نکاح) او دنورو شیانو فیصله او انتظام به

کېږي. داټول شیان په برکت کی داخل دي ځکه دایو ډول برکت دی او دوهم ډول برکت دیني دی چې په احادیثو کی ذکر ده.
کله چې دشعبان دمیاشتي پنځلسمه شپه شي او مابسام الله جل جلاله ددنیا آسمان راکښته شي ، داد دي شپې دخصوصیت وجه ده. ځکه چې هره شپه له نیمې شپې وروسته لوی خدای جل جلاله ددنیا آسمان ته تشریف راوړي اوپر بندګانو درحمت نظر کوي. یعني په نوروشپوکی له نیمائې وروسته او په دې شپه کي له مابسامه څخه دخداي جل جلاله درحمت نزول کیږي ، داهم یوه د برکت وجه ده ددې شپې قدر به هغه څوک کوي ، چې له الله جل جلاله سره ئي بي پایه مینه وي ځکه چې ددې شپې هره لمحه غنیمت ده او هر حبیب دخپل محبوب توجه ډیره قدرمنه ګڼي . خو دبرات او قدر په شپه داد یدار (توجه ) ټوله شپه وي. (التبلیغ ۲۲مخ ۸ټوک حضرت مولانا تهانوي صاحب

## دبرات په شپه کي دخداي جل جلاله نظام

حضرت عکرمه رضی الله عنه له ابن عباس رضی الله عنه څخه ددې ایت تفسیر داسې نقلوي: چې په دې ایت کي چې دکومې شپې ذکرشوی هغه دشعبان مینځنۍ شپه ده په دې شپه کي هر مهم کار (امرحکیم ) جلاکیږي ، په دې شپه کي الله جل جلاله دکارونوتدبیر کوي ، مړه کیدونکي خلګ له ژوندو څخه جلاکوي ، کوم خلګ چې په راتلونکي کال کی مري په دې شپه کي دهغوي نومونه جلاکیږي ، ګواکي دهغوي فهرست په دې شپه برابریږي ، دکومو خلګو چې دبیت الله شریفي سفر(حج ) په نصیب وي دهغوي نومونه جلالیکل کیږي ، او کوم زیادت او کمبود پکي نوي ، دحکیم ابن کیسان رحمة الله علیه وینا ده چې دشعبان په مینځنۍ شپه کی الله تعالی پر مخلوق باندي نظرکوي ، او څنګه چې لوی خدای جل جلاله داخلګ پاک کړي تر راتلونکي کاله به داسې پاک (معصوم ) وي ، له عطاء

بن یسار رحمة الله علیه څخه روایت دي چې دشعبان په مینځنی شپه کې دخلګو دټول کال اعمال الله جل جلاله ته وړاندې کیږي ، چې یو څوک په سفر ځي یانکاح کوي ، خو الله جلاجلاله دهغوي نومونه دژوندوله فهرست څخه راباسې ، یعني دبنده چې څنګه اراده وي خو الله جل جلاله ورته مرګ لیکلی وي ، (غنیة الطالبین ۳۲۱/مخ

## دملائکواخترونه

لکه څنګه چې په ځمکه کښې پرمسلمانانو دوه اختره دي همدا رنګه په اسمان کښې پرملائکو هم دوه اختره دي دمسلمانانو اخترونو کچنی اختر (دشوال اول تاریخ ) او لوی اختر (دذي الحجي لسم) ورځې دي ، اودملائکو اخترونه دبرات اوقدر شپې دي.

دملایکو اخترونو څکه دشپې دي چې هغوی ویدیږی نه اودمسلمانانو اخترونه ځکه دوځې شول چې هغوی ویدیږی. (غنیة الطالبین ) ص ۳۲۳ ۲۲

## دمرګ اوژوند پریکړه

له حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها څخه روایت دي : چی حضرت محمدصلی الله علیه وسلم له ماڅخه پوښتنه وکړه : ایا ته خبره یې چی په دې شپه (دشعبان پنځلسمه ) کښی څه کیږی ؟ما ورته وویل یا دالله تعالی رسوله ! زه نه یم خبره ، ته راته ووایه چی څه کیږی ؟ حضرت محمدصلی الله علیه وسلم وویل : چی دانسانانو هرهغه څوک چی په راتلونکی کال کښی پیداکیږی دهغه دپیدائښت نیټه معلومیږی ، اوکوم څوک چی په اینده کال کښی مري په دې شپه کښی یې دمرګ نیټه لیکل کیږی اوپه دې شپه کښی دخلګو عملونه پورته ( خداي جل جلاله ته ) خیژی اودبندګانو روزې ( رزق ) کښته راځی ( معلومیږی ) حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها وایې : چی ماپوښتنه وکړه ای دخدای جل جلاله رسوله ! آیا کوم

شخص بغیر دخدای تعالی له رحمت نه جنت ته نشی داخلیدلای هغه صلی الله علیه وسلم راته وویل: هو هیڅوک هم بې د خدای له رحمت څخه جنت ته نشی تللای نبی کریم صلی الله علیه وسلم داالفاظ دری واره مکرر کړل مابیا وویل چی ته هم بیله اجازې دخدای تعالی نشی جنت تلای ؟ ده په خپل تندی مبارک لاس کښیښود وي ویل: هو زه هم دخدای جل جلاله له رحمت څخه بغیر جنت ته نشم تللای داالفاظ هم هغه درې واره تکرار کړل .

**تشریح** : په دنیا کښی چی څومره انسانان پیدا کیږی یا مړه کیږی ډیر مخکې لا دهغوئ دپیدائښت او مرګ په اړه فیصلې په لوح محفوظ کښی درج (ثبت) دي لیکن هرکال دبرات دمیاشتې په پنځلسمه شپه کښی دوخت تعین کیږی چی څوک په دې کال کښی مري اوڅوک پیداکیږی (دعملونو دختلو ) مطلب دادی چی په دي کال کښی چی بنده کوم اعمال کوی نیک یا بد په دې شپه کښی لیکل کیږی لکه څنګه چی په حدیث شریف کښی راغلی دي چی په دي شپه کښی مرګ اوژوند لیکل کیږی اودکوم چاچی دحج نصیب وي هغه هم لیکل کیږی .لکه چی حضرت عائشې رضی الله عنها واوریدل چی کوم عملونه چی په راتلونکی کال کښی یې بندګان کوئ نیکل کیږی دا پوه شوه چی جنت ته دخول هم محض ( خاص ) دالله جل جلاله تر مهربانی تعلق لری .لکه څنګه چی غواړی په خپل فضل اوکرم سره یې جنت ته داخله وي ، اوکه یې خوښه شوه نه یې داخلوی .دنبی کریم صلی الله علیه وسلم قیمتی وینا ددې ایت کریم سره خلاف نه ده ( وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ) یعنی داجنت هغه ده چی تاسوته دهغه څه(ددنیا داعمالو ) په بدل کی درکړل شوی دي چی تاسو به هغه کارسرته رساوو. (پاره ۸ رکوع ۱۲)

ځکه چې ښه (نیک ) اعمال دجنت دداخلیدو ظاهري سبب دي ،لکن حقیقي سبب دالله جل جلاله فضل، کرم اومهرباني ده ، نه نیک اعمال ) ، بیا هم نیک اعمال دلوی خدای جل جلاله فضل اوکرم دي که له چاسره دلوی خدای جل جلاله مرسته نه وي نوهغه به څنګه نیک اعمال وکړي ؟نیک اوصالح اعمال بنده هغه وخت کوی چې دالله تعالی فضل اوکرم دهغه رهنمائي وکړی له دې ټولو شواهدو سره سره بیا هم ویلی شو چې جنت ته تګ یوازی دالله تعالی پر مهربانی باندی موقوف دي بعض علما وایې چې جنت ته دخول محض دالله تعالی درحمت نتیجه (پایله ) ده اوپه جنت کښی مختلفې درجې داعمالو پر ډیروالي اوکم والې پورې تعلق لری .یعنی وجنت ته داخلیدل خو دالله تعالی رحمت موقوف دي ، اواختلاف دمرتبو بیا تراعمالو تعلق لري ( داعمالو مطابق درجې دي )
( مظاهر حق جدید ص ۲۰۰ ج ۲ )

## په کال کی دمنظوری شپه

نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایی چې هر بنی آدم(انسان ) چې په آینده کال کښی پیداکیږی . پدې میاشت کښی دهغه نوم نیته لیکل کیږی او دبنی آدم هرشخص چې په آینده کال کښی مړ کیږې په دې شپه کښی یې نوم اونیته لیکل کیږی . دانسانانو اعمال پورته خیژی ( خدای تعالی ته وړاندی کیږی ) اودهغو یې چې څومره روزي په نصیب وي هغه راکښته کیږی ( لیکل کیږی ) .

**تشریح** : ددنیا دټولو حکومتونو دستور دي چې دخپلو وسائلو اوپالیسو مطابق یو کال مخکی داخراجاتو اوصادراتو لست جوړوي په دې کښی دپارلیمان ( ولسي جرګه ) او وزیرانو په میاشتو ناستې اومجلسونه

(شورى ) وي .دالست يې دحكومتې كارونو لپاره رهنما هم وي له دينه داهم معلوميږي چې په راتلونكې كال كښې څونه اندازه ترقي كيږي.
همدا راز دشعبان دڅلورلسم اوپنځلسم تاريخ په مينځ كښې لوى خداى جل جلاله هر كال دخپل لوى اوپراخ حكومت لست برابر وي چې دالست دانسانانو دژوند پر هر اړخ محيط وي .په دې شپه كښې ددې فيصله هم كيږي چې څونه خلګ به دنيا ته راځي اوڅونه به له راتګ نه وروسته له خپل عمل سره ځي ، اوڅومره خرڅ به كيږي اوله چانه به څومره بيرته اخيستل كيږي .دشعبان په پنځلسمه شپه دلوى خداي جل جلاله له حكم سره برابر له هغه څه نه چې په اوله ورځ يې فيصله شوى . ديوه كال داعمالو (لست ) به دخداى تعالى امين مخلوق اومقربو ملائيكو جبرئيل، ميكائيل ، اسرائيل اوعزرائيل عليهم السلام ته حواله كيږي په دې دنيا كې به هغه څه كيږي څنګه چې ملائكو ته سپارل شوى دي.

## دغوښتنې دوړاندې كولو وخت

تاسو به لېدلى يا اوريدلي وي كله چې ديوه مملكت كلني حساب دورځي دټول ملک په اړوند دمختلفو شعبو دمطالبو عارضې حكومت ته وړاندې كيږي ، اودخپلو ضرورياتو دپوره كولو لپاره حاضريږي، همدا شان كله چې لوى خداى تعالى دخپلو بندګانو دژوند په اړه يوه لائحه ترتيبوي نوټول بندګان بايد دلوى خداى جل جلاله په حضور كښې حاضر شي ترڅو هريو ورته دخپل حاجت وړانديز وكړي لكه څنګه چې حكومتونه دخپلو عامو مطالبو ملحوظ وي اوبيا دهغو ىدضرورت مطابق لست جوړوي ترڅو يې مشكلات په بشپړه توګه ختم شي . همدا شان لوى خداى تعالى دخپلو بندګانو دوعاوې اوري اوبيا دهغو ى ددعاوو مطابق خپل رحمت وربانډى كوي څكه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلى دي.

وعن علی رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاکانت لیلة النصف من شعبان فقوموا لیلها وصوموا یومها فان الله تعالی ینزل فیها بغروب الشمس الی السماء الدنیا فیقول الا من مستغفر فاغفر له الا مسترزق فارزقه الا مبتلی فاعافیه الا کذا حتی یطلع الفجر

(الترغیب-۳۲ مخ ۲ ټوک ـ تفسیر روح المعاني ۱۰۲ مخ ۱ ټوک)

**ترجمه**: له حضرت علی رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دي: کله چې دشعبان پنځلسمه شپه شی تاسو باید عبادت وکړی او په راتلونکی ورځی یې روژه ونیسئ ځکه چې لوی خدای جل جلاله له لمرلیدو وروسته ددنیا آسمان ته راکوزیږي او الله تعالی وایې چې آیا کوم دبخښنی غوښتونکی شته چې زه بخښنه ورته وکړم آیا کوم درزق غوښتونکي شته چې زه رزق ورکړم، اوآیا کوم دمصیبت زده شته چې زه یې مشکلات ورته حل کړم، اوداسی نور........ اوداوازونه ترصبح صادق پورې وي.

## دغوښتنې مضمون

له دوعا څخه علاوه دشعبان په پنځلسمه شپه کښی دعبادت اوپه راتلونکي ورځ کښی دروژې نیولو هدایت شوی دي موږ چې کله حکومت ته عارضه وړاندې کوو نو په الفاظو، جملو اومضمون کښی دعاجزۍ اظهار کوو. نوبیا کله چې موږ دخدای تعالی دربار ته ددعاو وړاندیز کوو چې الله تعالی دټولې دنیا دپاچاهانو پاچا اومالک حقیقی دي نو لازمه چې ورته په هرحالت کښی عجز او زاري اختیار کړو اودخپلی کمترۍ او دلوی خدای جل جلاله دلویې اظهار وکړو اوپه عاجزۍ سره عارضه ورته وړاندی کړو زموږ داعجز او زاری دټولې شپې پرعبادت دلالت کوی. اوله احادیثو څخه ثابته ده کله چې بنده په عجز او زاریو دلوی خدای تعالی په

حضور کښې لاس په دوعا شي دلوی خدای جل جلاله رحمت په جوش راځي او دبنده دادوعا انشاء الله قبلیږي.ای مسلمانانو ! اوس لاهم وخت شته چې څه خطاګانې درنه شوی باید داسې نیک اعمال وکړو چې دهغې کفاره شي . اوچې کوم وخت راتلونکی وي دلوی خدای جل جلاله د رحمتونو لمن وغوړوي دشعبان مبارکې شپې چې تیر شوی اوپه هغې کښې چې موکوم ناوړه رسمونه کړي وي لکه اورلګول یا داسې نور دهغې په وجه مه مایوسه کیږئ (راشئ دلوی خدای جل جلاله دربارته ! په دې شپه کښې دلوی خدای جل جلاله دربار ته رجوع وکړئ، غمجن کیږئ مه. له پښیمانۍ سره راشئ دلوی خدای جل جلاله په دربار کې اوښکې وبهوئ ، تاسو وګورئ چې خدای جل جلاله له تاسو نه راضي دي ، نور هم دهغه درحمت انتظار وکړئ نن یوازې او یوازې دخدای تعالی درحمت ضرورت دي دلوی خدای تعالی لورته رجوع وکړئ که چېرې یوقدم دخدای تعالی په لار کښې واخلئ ، دخدای تعالی له لورې به لس واره پرتاسو دخدای تعالی رحمت وشي.همدا شان پدې مبارکه شپه کښې چې چېرې دخدای تعالی په حضور کښې دوعا کوئ نو باید وټولو دوستانو ، قریبانو ،ملګرو ، اولیاء کرام اودعامو مسلمانانو لپاره هم دمغفرت دوعاوې وکړئ دخپلو اولادو لپاره هم دوعا وې وکړئ . که چېرې ممکنه وي هدیرې ( مړستون) ته لاړشئ دقبرونو زیارت پرسنت طریقه وکړئ اودپنځلس تاریخ روژه هم ونیسئ .اوکه چېرې دا ممکن نه وي لږ ترلږه خپل ځان او اولاد له ګناهونو ، خرافاتونه وژغورئ لکه څنګه چې الله تعالی وایې:

(یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَکُمْ وَأَهْلِیکُمْ نَارًا (/ التحریم /پاره/ ۲۸ )

ای دایمان خاوندانو ! خپل ځانونه اواولاد له اوره څخه وساتئ

(ترجمه: شیخ الهند ص ۷۴۳ مولانا محمد رفعت قاسمی ).

## دقدر دشپې دپټوالي حکمت

دبرات دشپې په ښکاره والی اودقدر دشپې په پټوالی کښې دالله تعالی حکمت دادي چې دقدر شپه دلوی خدای تعالی درحمت دنازلیدو ، دګناهونو دبخښنې اوله دوزخ څخه دخلاصیدو شپه ده لوی خدای جل جلاله ځکه داشپه پټه کړي ده ترڅو چې خلک یوازې ددې شپې پرعبادت بسنه (اکتفا) ونکړي ، اونور عبادت پرې نږدي.

## دبرات دشپې دښکاره والی حکمت

دبرات شپه (دشعبان دمیاشتی پنځلسمه شپه ) لوي خدای جل جلاله داشپه ښکاره کړي ده ځکه چې داشپه دقضاوت اوحکم ، دغضب اورضامندی ،دقبلیدو اوریدو ، دنن دیوالی اولېریوالی ، دنیکمرغی اوبدبختی ، دکرامت اوپرهیزګاري شپه ده په دي شپه کښی ځینی نیکمرغه اوځینی بې رټل کیږی څوک دښو کارونو په وسیله سو بمن(کامیاب ) کیږی ځینی بیا دبدوکارو په بدله سره خوار او ذلیل کیږی څوک دبرکت اوکرامت خاوند کیږی ، ځینی نور بیا له دینه بې برخې کیږی چاته دنیکو عملونو ثواب ورکول کیږی اوځینو ته بیا زجر ورکول کیږی ډیرخلګ په ښارونو کښی په کار اووظیفه مشغول وي خودخدای تعالی په نزد بې دکفن تیاری کیږی ، دځینو بیا دقبر تیاری کیږی ، خوهغوی ددنیا په خوښیو بوخت وي ځینی بیا په تکبر ، خندا اوساتیری بوخت وي ، لکن دهلاکت وخت یې نژدې وي په ډیرو دنګومانیو ښکلا ختمه وي ، خوژر ده چی مالک یې پناه اوخوړو ته لاړ شي ځینی بیا دثواب په تمه وي ، لیکن پر دوئ عذاب نازلیږی .ځینی بیا دښه زیری (بشارت ) په امید وي لکن دوئ ته تاوان رسیږی ډیر بیا دجنت په تمه وي خو دوئ ته دوزخ ورنصیب کیږی .څوک بیا د یوځای والی په تمه وي ، لکن دهغوی بیلتون په برخه

کيږي څينې نور بيا دپادچاهي دورکيدلو په اميد وي ، خودهغوی تباهي په برخه وي (غنية الطالبين ص ۳۲۳)

## دوينوالي څوارلس شپې

دټولو علماؤ کرامو پدي اتفاق دي چې دکال په دغو څوارلسو شپو کښې وينتوب اوعبادت پکار ده

(۱) دمحرم دمياشتې لمړۍ شپه
(۲) دعاشورې شپه
(۳) درجب دمياشتې لمړۍ شپه
(۴) درجب مينځنۍ شپه
(۵) درجب اوويشتمه شپه
(۶) دشعبان (برات) مينځنۍ شپه
(۷) دعرفې شپه
(۸) دکوچني اختر شپه
(۹) دلوی اختر شپه
(۱۰) دروژې دمياشتې لمړۍ
(۱۱) يوولسمه
(۱۲) دولسمه
(۱۳) ديارلسمه
(۱۴) اودروژې داخيری لسوتاق شپې يوويشتمه ، درويشتمه ، پنځه ويشتمه ، اوويشتمه ، اونه ويشتمه شپه.

همدا راز دعلماء کرامو پر دي هم اتفاق دي چې په دغو اوولسو ورځو کښې عبادت کول هم باعث دډير ثواب دي ، دعرفې ورځ ، عاشورې

( دمحرم دمیاشتې لسمه ) ورځ ، دبرات دمیاشتې مینځنی ورځ ، دجمعې ورځ ، ددوارو اخترو ورځې ، دذالحجې لس معلومې ورځې اودتشریق ورځې ( دذالحجې یوولسم ، دوولسم اودیارلسم تاریخ )
په دې ټولو ورځو کښې دجمعې ورځ او دروژې دمیاشتې دټولو ورځو په هکله ډیر ټینګار شوی دي.

**نوټ** : درجب دمیاشتې په لمړی ورځ پورته شئ عبادت وکړئ اوپه ورځ بې روژه ونیسئ ددوارو اخترونو په شپو عبادت و کړئ . لکن په ورځو کښې بې روژه مه نیسئ دبرات (شعبان ) په مینځنی اودعاشوری په شپو کښې عبادت وکړئ اوپه ورځو کښې بې روژه ونیسئ. ( غنیة الطالبین ص ۳۴۱ )
حضرت ذوالنون مصری رحمة الله علیه وایې چې درجب میاشت دبدیو دختمیدو لپاره اودبرات (شعبان) میاشت دعبادت کولو لپاره ده لکه څنګه چې دروژې میاشت دکرامتونو دلیدلو لپاره ده په رشتیا چې کوم شخص بد اعمال نه پریږدي . دلوی خدای تعالی بندګي او اطاعت ته غاړه نه اږدي اودلوی څښتن کرامتونه ته منتظر نه وي همدا شخص له دعبث کارونو له کوونکو څخه ده همداراز دذوالنون مصری رحمه الله وینا ده چې درجب میاشت دکښت کرلو میاشت ده یعنی په رجب کښې کښت کرل کیږی په شعبان کښې اوبیږی اوپه روژه کښې بې حاصلات اخیستل کیږی ،ظاهره ده چې حاصل اخیستونکی هغه څه ریبي کوم چې بې کرلې وي همداراز څوک چې څه کوي دهغه بدله به ورکول کیږی کوم څوک چې خپل کښت ضائع کوی دریبلو په وخت کښې به له پښیمانتیا سره مخامخ کیږی . ددې پایله ( نتیجه ) ضرور بده وي. ( غنیة الطالبین ص ۳۳۹ ).

## هره شپه دلیلة القدر ( دقدر شپه ) ده

که چېرې لیلة القدر دلغوی معنی په لحاظ مراد شی : نوهره شپه لیلة القدر اوقدر ورده . ځکه چی هره ورځ نعمت اوهره شپه دولت (شتمنی) ده .په حدیث شریف کښی راغلی دي چی هره ورځ دنیمې شپی نه وروسته الله جل جلاله ددنیا (اول ) اسمان ته تشریف راوړي اودبندګانو ولور ته متوجه کیږی اودنیازموږ کور دي اوځمکه موفرش ده ګواکه لمړی اسمان ددنیا بام دي اودخونې بام دخونې جزوي لکه چی الله تعالی زموږ کور ته تشریف راوړي اودانیکمرغی موپه برخه کیږی چی دپاچاهانو (شهنشاه ) هره ورځ زموږ کور ( ددنیا اسمان ) ته تشریف راوړي .موږ ته متوجه کیږی اودنیکیوژمنه (وعده ) راسره کوي .دخدای تعالی یوې بلی مهربانی ته خیر شئ : که چیرې موږ دکوم ملګری دروازې ته ورشو خصوصا دیومرید (شاګرد ) کورته ورشو ، خودهمدې کور خلګ له موږ سره خبري ونکړی ښکاره خبره ده چی موږ به مایوسه کیږو که مایوسه هم نه شو دومره ګیله خوبه ضرور وکړو چی موږ کورته درغلو خوتاسو راسره خبرې ونه کړي.
که چېرې دکور خلګ ویده وي ، نو وبه وایو چی د اځنګه خوب دي چی زموږ دورتګ یې کوم تصور ونکړ (مطلب داچی څومره تعلق زیاتیږی هغومره ګیله زیاتیږی ) اوکه چېرې دخطه په واسطه سره لمړی خبر ورکړل شی چی په نیمه شپه کښی زه درځم پدي صورت کښی خو دي مریدانو ته دخوب اجازه هم نشته .او اوس دلوی خدای جل جلاله معامله وګورئ له دې سره سره چی دهغه الله جل جلاله حقوق واقعې اویقیني دي لیکن دخپل راتګ له خبر نه وروسته راځي اوموږ ویده وینی خوبیا هم نه ناراضه کیږی اووایې چی دي بنده یومستحب کار پري ایښی دي او الله تعالی موږ ته دبې همتی لقب نه راکوی سبحان الله څومره دمهربانی خاوند دي.

دحضرت مولانا اشرف علی تهانوی دبیان خلاصه داده : که چېری مور دکوم ملګری یامرید کورته ورشو او هغه له مور سره خبری ونه کړی مور به څومره خوابدي اوپه غصه شو . خوالله تعالی زموږ کور (ددنیا اسمان ) ته تشریف راوړي اوموږ په خوب ویده وینی بیاهم هغه الله تعالی له موږ څخه نه ناراضه کیږي ددي مهربانی تقاضا خو داده چې موږ هرڅه کولاي ددي لپاره چې الله رب العزة هیڅکله ناراضه نه شی دلوی خدای تعالی په حضور کښی هروخت عاجزی کول پکار ده .لنډه داچی هره شپه دقدر شپه (لیلة القدر ) ده په دي معنی چی الله تعالی هره ورځ زموږ ولور ته په رحمت سره توجه کوی. (التبلیغ ص ۳۰ ج ۸ حضرت تهانوی(رح ) ).

## دبرات په شپه کښی درسول الله صلی الله علیه وسلم عمل

دځینو علماؤ په نزد ددې شپې یوه ځانګړتیا داهم چې هدیرې (مړستون) ته تلل هلته دټولو مسلمانو روح ته دمغفرت دعاکول اوڅه حصه دالله تعالی دکلام (قران ) لوستل ثواب یې مړو ته وربخښل سنت دي حضرت عائشة رضی الله عنها وایې چې یوه شپه (پنځلسمه دشعبان ) وه زما وارو چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم زماخونې ته راغي کالي یې کښل چې لایې پوره کښلی نه وو بیرته یې واغوستل او ولاړشو ماورباندي بدګمانې وکړه هسې نه چې دکومې بلې بي بې کوټې ته لاړشی ، زه هم دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په وروسته پټه پټه ورپسې ولاړم ، چې کتل مې نبی کریم صلی الله علیه وسلم جنت البقیع (دمسلمانانو هدیرې ) ته ولاړی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دمسلمانو ښځینه نارینه اوشهیدانو ته دوعا کوله .اومایه خپل زړه کښی وویل چی زما مور اوپلار دي ترتاقربان وي ماڅه مګر کوئ اوته څه کوې بیا بیرته راړهي شو اوزما کوټی ته رانتوت اوویې ویل : ای عائشې ! ولی دي دومره ساه وکښه ؟ماورته

وویل :ای دخدای تعالی رسوله ! زمامور اوپلار دي تاقربان وي ، ستا په تګ سره ما ته دابدګماني راپیداشوه هسې نه چې دکومې بلې بې بې کوټې ته لاړ شي نوزه هم درپسې لاړم ترڅومې ته په جنت البقیع کښې په دوعا ولیدلی .حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په جواب کښې راته وویل ! ای عائشې ایا ستا داخیال وو چې الله تعالی اودهغه رسول به ما سره ظلم وکړي؟ ، ماته حضرت جبرائیل راغی اووې ویل چې نن دشعبان پنځلسمه شپه ده نن الله تعالی دبنوکلب دقبیلې دوزو دروزغنو (ویښتانو ) په اندازه (دبنوکلب ترټولو ډېرې وزې وې ) مخلوق له جهنم(دوزخ ) څخه ازادوي.

**البته** :په مشرک ، حاسد (کینه کونکی )صله رحمی قطع کونکی ، ترپښیو دلاندی دپایڅو ځړونکي ، دمور اوپلار نافرماني کونکی اودهمیشه شراب څښونکی باندی درحمت نظر نه کوی .لدي وروسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم کالی وکښل اووې ویل چې اي عائشې آیا نن شپه دعبادت کولو اجازه راکوی ؟ (اجازه یې ځکه څښتی وغوښته چې د محمد صلی الله علیه وسلم عادت داوو چې دشپې په څه حصه کښې به یې عبادت کاوو اوپاتې برخه به یې داستراحت او دخپلو بیبیانو دطبعیت سمولو لپاره امعلومه وله چې په دې شپه کښې یې امکان نه وو ) حضرت عائشة رضی الله تعالی عنهاوایې ما ورته وویل هو زما مور اوپلار دې ترتاقربان وي هغه وو چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پر لمانځه ودریدی اویوه داسی اوږده سجده یې وکړه چې زما خیال شو هسې نه چې دمحمدصلی الله علیه وسلم ساه ختلې وي او روح یې قبض شوی وي زه ورولاړه شوم اودحضرت محمدصلی الله علیه وسلم پر تلو می لاس ورکښیښود دمحمدصلی الله تعالی علیه واله وسلم په پښو کښې یوقسم حرکت وو

زما زړه پرې مطمئن شو ( دړوند مې يقين شو ) او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په سجده کښې د الفاظ ويل

اعوذ بعفوك من عقابك واعوذ برضاك من سخطك واعوذبك منك جل وجهك لااحصي ثناً عليك انت كما اثنيت علي نفسك

**ژباړه** :زه ستا له غضبه ستا په عفو سره پناه غواړم او ستا د ناراضيتوب څخه پنا غواړم ستا په رضامندی سره او زه له تا څخه ( ستا د عذاب څخه پناه ) غواړم ستا په مهربانی سره ،ستا ذات لوی او عالی دي ، زه ستا تعريف او ثناء نه شم ويلای لکه څنګه چې ته ثنا وايې پر ځان خپل ،حضرت عائشة رضی الله عنها وايي چې له حضرت محمد صلی الله تعالی علیه واله وسلم څخه پوښتنه وکړه چې دا دوعا څه فضيلت لری ؟ حضرت محمد صلی الله تعالی علیه واله وسلم په خوا ب کښې راته وويل : ای عائشې ! دا دوعا زده کړه او نورو ته يې هم ورزده کړه . ماته جبرائيل علیه السلام دادوعا رواښوو له ، او زه دا دوعا په سجده کښې بيا بيا وايم (رواه البيهقی ).

لدی تفصيل څخه به تاسو ته ددې مبارکې شپې دستور (کړنلاره ) معلومه شوې وي او دا به هم درته معلومه شوې وي چې په دې شپه کې بايد څه وکړو ؟څنګه عبادت وکړو څنګه هد يرې ته لاړشو او هلته څه وکړو او چې وروسته کورته راشو په عبادت مشغول شو دهغې طريقه ددې ټولو اعمالو کولو سنت طريقې به درته معلوم شوې وې . (فضائل الايام والشهور ص ۱۱۳).

## دحضرت عائشة (رضی الله تعالی عنها ) بزرګي

دحضرت عائشې رضی الله تعالی عنه دخواب حاصل دادي ای دخدای جل جلاله رسوله نعوذبالله چې الله جل جلاله اودهغه رسول به لما سره دظلم معامله کوی .خو زما فکر داوو چې الله تعالی به درته حکم کړي وي ، يابه تاسو دخپل اجتهاد له مخې دکومې بلې بې بې کوټې ته ځئ علامه ابن

حجر رحمه الله دحضرت عائشې (رضی الله تعالی عنها ) ددې جواب په باره کی وایی چې خدای ناکرده (خدای مه کړه ) که چېری حضرت عائشة رضی الله تعالی عنها دمحمدصلی الله تعالی علیه واله وسلم په څواب کښی نعم (هو) ویلې واي نوخبره به ډیره باریکه شوی وای . آن داچی داځواب به کفر حساب شوی وای لکن حضرت عائشې (رضی الله تعالی عنها ) له ذهانت څخه کارواخیست ځکه یې خپله عاجزی اوعذر ښکاره کړ .بیا حضرت محمدصلی الله تعالی علیه واله وسلم دولاړیدو وجه بیان کړه چی دشعبان په پنځلسمه شپه ددنیا اسمان ته تشریف راوړي ، اوپه بی پایه رحمت پرخپلو بندګانو کوی چی دبنوکلب دوزو دوزغنو (وړیو) په برابر خپل بندګان ددوزخ له اوره څخه ازاد وي ، نوځکه چی داوخت دلوی خدای جل جلاله دمهربانې اواحسان وخت دي ځکه ماوغوښتل چی په دي مقدس اومبارک وخت کښی دخپل امت لپاره دمغفرت دوعاوې وکړم هغه وو چې جنت البقیع ( دمسلمانانو هدیرې ) ته ولاړم هلته له لوی خدای جل جلاله څخه په مغفرت مشغول شوم. (مظاهر حق جدید ص۱۹۵ج۲)

## دخدای جل جلاله دنظام سپکاوی

لوئ خدای جل جلاله زموږ پر بدعملې اوبدکارې ښه عالم (پوه) دي په کومو ورځو کښی چی دبنده لپاره دډیر عمل کول ضرورت وي په هغو ورځو اوشپو موږ لا په ډیرو ګناهونو کښی بوخت یو موږ دا ښه زده کوو چې دبرات په پنځلسمه شپه کی پورته کیدل ضروري دي لیکن داځای موهیر کړی چې ولی ؟ اوڅنګه پورته کیدل ضروي دي ؟ دخدای جل جلاله درضااوخوشحالولو لپاره نه ، دخپلو ګناهونو څخه دتوبې کولو لپاره نه ، خدای جل جلاله درحمتونو څخه دبرخې اخستلو ، دخپلې عمل نامې څخه دګناهونو دپاکولو لپاره نه بلکه دخدای تعالی دقهر اوغضب دحاصلولو

لپاره دخپلو گناهونو دبېرولو لپاره ، دخدای جل جلاله دنعمتو څخه دځان لبرې کولو ، دخپلې عمل نامې دتورولو اودنیکیو ختم کولو لپاره ( الا ماشاء الله ) ای مسلمانانو ! غور اوفکر وکړئ ! غوږونه خلاص کړئ او واورئ ! لکه څنگه چې لوی خدای جل جلاله رحیم ( رحمت کونکی ) اوغفار (بخښونکی ) دی همداشان جبار اوقهار هم دي داسې عمل کول خودخدای تعالی په رحمتونو دملنډو وهلو سره برابر دي اولکه څنگه چې په ښو وختو کې داعمال صالحه ( نیکو عملو ) اجر زیاتیږی ، همداشان دبدوکارو گناهونه هم زیاتیږی . تاسو فکر وکړئ که چیرې یوپاچا خپل فوځ ته امر اواعلان وکړي ، چې سبا د( یوه معلومه ورځ ) فلانکې گروند ته دفوځی ازموینې لپاره راشئ ، خپلې فوځې تجربې ښکاره کړئ . دپاچاه له لورې به انعامونه درکړل شی اوفوځیانوداخبره واوریدله میدان ( گروند ) ته حاضر شول خودفوځی ازموینې لپاره نه دفوځی شجاعت کمالات ، دهرکلې اودفوځې قربانی دښکارولو لپاره نه بلکه دبباتیری لپاره آیا پردې به پاچاه غصه نشی ایا ددې پرځای چې فوځیانو ته انعامونه ورکړی لعنت اوسرزش به ورنکړی ؟ خامخا به یې ورکوی . غور اوفکر وکړئ په کومه طریقه چې موږ دبرات شپه دخدای تعالی په حضور کوم عملونه کړی .آیا دخدای تعالی قهر اوغضب به له هرلوزه پر موږ نشی نازل ، آیا ذاموږ دخدای تعالی پررحمتو پسخند نه دي وهلی بیا نو ولې مسلمان پر خپلو تکلیفونو اومصیبتونو ژاړې تراوسه موږ اوتاسوڅه کړې دي خدای تعالی موږی اینبی دي خدای تعالی موهیر کړی دي دخدای تعالی دعبادت پر ځای په شیطانې اعمالو فخر کوو ، خدای تعالی هم موږ پری اینبی یو . ای مسلمانو ! خپل عملونه بشپړ کړئ له نافرمانیو څخه راوگرځئ له عبث اوبې هوده کارو څخه ځان وساتئ دیوه خدای تعالی بشپړ

تابع او مخلص بندګان شئ لکه څوارلس سوه کاله مخکې چې تاسو دهغه تابع واست . تاسو دخدای تعالی شئ خدای تعالی اوټول کائنات به ستاسو شي (فضائل الایام والشهور ص ۱۱۵)

## دشپې په کومه برخه کی پورته کیږئ ؟

اوس دغور اوفکر ځای دادی چې دشپې په کومه برخه کی پورته کیدل افضل دي ؟ددې تعین له قران کریم څخه هم کیږی اوله حدیث مبارک څخه هم ځکه چې له قران څخه معلومیږی چی دشپې په اخیره برخه کښی پورته کیدل ضروري ده . لکه څنګه چی الله تعالی وایې :

(إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْأً وَأَقْوَمُ قِيلاً ۶) (المزمل پاره ۲۹)

البته دشپی پورته کیدل سخت تکلیف دي لکن خبرې بې صحیح برابرې دي اوله ناشئة الیل څخه له خوبه وروسته ثابتیږی ځکه ددې په اختیار سره پر نفس ډیر تکلیف راځی نوځکه داافضل دي اودسورة له اخیری برخې څخه هم معلومیږی دابهتری له قران کریم اوله حدیث شریف څخه هم معلومیږی (۲ الله تعالی وایې) دشپې دآخیرې حصې فضیلت له ډیر مختلفو احادیثو څخه معلومیږی اوله عقل څخه هم دامعلومیږی ځکه چی داوخت دخوب وي اوخوب پری ښودل مشکل ،ګران وي په یوه حدیث کښی راغلی دي چی کوم شخص دشپې پورته شې عاجزې او زاری کوې زه الله تعالی له هغه څخه ډیر خوشحالیږم . ځکه چې زما درضا لپاره بې خپله محبوبه اوتوده (ګرمه ) بستره پری ایښی وي لدي نه هم معلومیږی چې دشپې اخیرې حصه ډیر فضیلت لري لکن که چا ته داکار مشکل وو بیا دي دشپې په اوله حصه کښی څه برخه مختاره کړي ځکه چې په نورو شپو کی لوی خدای تعالی دشپې په اخیرې برخه کښی ددنیا اسمان ته راځی اوپه دې شپه ( دشعبان پنځلسمه ) کی له لمرلویدو وروسته راکوزیږي ځکه چې

کومو خلګو ته دشپې په اخيره کښې عبادت کول مشکل وي هغه دی دافضيلت دشپې په لومړی برخه کښې حاصل کړی . کمه درجه يې داده چې دماخستن ترلمانځه پورې دي په عبادت کښې مشغول شي.
(التبليغ ص ۳۲ ج ۸).

## دشيطان دهوکه (چل)

دادنفس عادت دي چې کله يوانسان دثواب حاصلولو اراده وکړي ، نفس ورته خپلې بانې جوړ وي ځويې له دي کاره وګرځوی همداشان ، دبرات دشپې اوشب قدر دعبادت په وخت نفس انسان ته دهوکه ورکوی چې دشپې په اخيره کښې عمل فضيلت لرې دشپې په اوله برخه کښې څه فائده لری ؟ ورکوری څومره دافسوس ځای ده دشپې په اوله حصه کښې په داسې شان لدي عظيم عبادت څخه بې برخې کيږی . بعض انسانان دنفس په ډير خفی (پټ) چل سره غوليږی ددې لپاره عبادت کوی چې زه په خلګو کښې مشهور شم په دي سره نفس خوشحاليږی خو داعبادت هيڅ ګټه نه لری ځينی خلګ په دي نيت دشپې په اخيره حصه کښې راپورته کيږی چې په خلګو کښې ممتاز عابد ونومول شی لکن افسوس داتکبر اوغرور دي چاته چې تکبر او غرور خوښ وي الله تعالی ته ډير مبغوض دي (التبليغ ص ۲۷ ج ۸)

## په مبارکه شپه کښې ګناه کول

ددې مبارکې شپې ډير فضيلت دي اوپه دې شپه کښې ګناه کول هم ډيره ګناه لرې په نسبت دنورو وختو . لکه څنګه چې دځای حکم دي همداشان دزمان (وخت) حکم دي دمثال په توګه : په يوه عام ځای کښې ګناه کول ، اوپه مسجد کښې ګناه کول ډير فرق سره لری بيا په مسجد و کښې مسجد

نبوی اومسجد حرام په کوم کښی چی لمونځ کول ترنورو زیات ( ډیر ) ثواب لری . په داسې پاک ځای کښی ګناه کول اوپه مسجد کښی ګناه کول ډیر عذاب لری لکه څنګه چی په یوه عام وخت کښی ګناه کول اوبل په یوه مبارک وخت کښی ډیر لوی عذاب لری مثلا : په روژه کښی ګناه کول ډیر بدکار دي تردې چې بیله روژې وي داهم مبارکې ورځې دي په دې کښی ګناه کول ډیر لوی عذاب لری . (التبلیغ ص ۷۵ ج ۸)

## ددې شپې ګناه :

کومه ګناه چی په دې شپه کښی کیږی دوه ډوله ده : یوډول هغه ګناه چی دعبادت په رنګ نه وي ددې بدوالی ډیر ظاهر اوښکاره ده . لکه پدې شپه اورونه لګول ، له دې څخه ډیر زیاته نقصانات راپیدا کیږی مالی تاوان هم دي ، اوکله دچا لاس ، یا کوز یابل څه اندام پری سوي وي له ګناه څخه علاوه نور نقصانات هم ورسره تړلی دي دوهم ډول هغه ګناه ده چی په رنګ دعبادت سره وي . دابدعت ده لکه څنګه چی په اکثره خلګو کښی دارواج دي چې په دې شپه ( حلوی ) پخوي څنګه چی په بدعت کښی خوند یامزه ډیره ده څکه ډیر انسانان پری مبتلا دي . اودخپلو په جوړولو سره یې روابولې یوتأویل ( حیله ) داده چی دنبی کریم صلی الله علیه وسلم غاښ مبارک شهید شوی وو اومحمد صلی الله علیه وسلم حلوی خوړله ، داخبره غلطه ده دا عقیده لرل ګناه ده څکه چی داواقعه په شوال کښی وه بعض خلګ وایې دادحضرت امیر حمزه رضی الله تعالی عنه دشهادت ورځې دي دادهغه فاتحه ده . داهم بې بنیاده ده څکه چی دحضرت حمزه رضی الله تعالی عنه شهادت هم په شوال کښی وو. اصلاح الرسوم ص ۱۳۲

اکثره خلگ په داسې گناه اخته دي چې دا منع کيږي هم نه ځکه چې بدعت کښې ډير خوند دي . بدعت هم يوه عظيمه گناه ده لازمه ده چې په دې مبارکه شپه کښې ځان ترينه وژغورئ .(التبليغ ص ۲۴ ج ۸)

## دالفيه ( زرگوني ) لمانځه حقيقت :

داخبره هم ديادولو وړده چې په ځينو کتابونو کښې ليکلې دي چې دشعبان په پنځلسمه شپه داخاص نفل ( چې سل رکعته او په هر رکعت کښې لس ، لس ځله قل هو الله ويل کيږي ) چې کول يې په کار ده ځکه داپه کوم قوي حديث ، يا ديو صحابي اوتابعي له قول څخه نه ده ثابته ، دعبادت په تعين کښې کوم قيد نشته . په احاديثو کښې دمبارکو شپو په عبادت کښې کوم قيد نشته . کوم چې چاته اسانه وي بايد هغه وکړي ، که څوک نوافل کوي اوکه تسبيحات ورته عام اختيار شته کوم چې دمخکې علماؤو له لورې دنوافلو کوم خاص هيئت ذکر شوی دي ، ددې سبب دادی چې کوم پير وخپل مريد ته په يوخاص حالت کښې داطريقه ويلې وي ، خودهغه لپاره ضرور يومصلحت ده ، لکن داطريقه عامول بدعت دي ، همدا شان نورو بزرگانو ته بدويل رواندي په حديث شريف کښې کوم معلوم عمل نه دي راغلی که غواړی چې تلاوت وکړی ، يا دلوی خدای تعالی ذکر وکړی ، يانوافل وکړی اويا نصيحت بل چاته کوی يا يې پخپله واوري لکه څنگه چې حضرت اشرف علی تهانوی صاحب فرمايلې دي په کانپور کښې موږ په دې شپه باندې نصيحت (تبليغ) کاوو ځکه چې په نصيحت کښې سړی ته خوب نه ورځي ،خوبيا هم ځينې ملگری ويده وو (التبليغ صحه ۴۱ ج ۸)

ښه فکر وکړئ چې په دې شپه کښې دعبادت کومه خاصه طريقه نه ده ثابته . خو ښه موکه دچانصيحت اورئ . نوکه نفل کوی او که تلاوت قران کريم کوئ دهرچا اختيار دي داکوم حديث چې دي : (صوموا نهارها ) داامر هم

لپاره داستحباب دي یادپنځلسمې ورځې روژه نیول مستحب ده فرض اوواجب نه ده ، غرض (قوموا الیلها ) له دي څخه ددې شپې فضیلت ثابتیږی اوپه حدیث کښی راغلی چې لوی خدای تعالی په دې شپه کښی ددنیااسمان ته راکوزیږی (هل من داع فاستجیب له هل من مستغفرفاغفرله ) یعني کوم دمغفرت غوښتونکی شته چې بخښنه ورته وکړو ؟آیا کوم دوعاکونکی شته چې دوعا یې قبوله کړو ؟ ترسهاره پورې په درحمت لمن ویره وي . (التبلیغ ص ۸۴ ج ۸ الترغیب ص ۱۰۴ ج ۲ ).

## دبخښنې په شپه کښی هم بې برخیتوب

وعن ابی موسی الاشعری رضی الله تعالی عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ان الله تعالی لیطلع فی لیلة النصف من شعبان فیغفرلجمیع خلقه الالمشرک اومشاحن –رواه ابن ماجة وروا‌ه احمد عن عبدالله بن عمر وبن العاص رضی الله تعالی عنهم

**ژباړه** : له حضرت ابوموسی اشعری رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل : لوی خدای جل جلاله دشعبان ( برات ) په پنځلسمه شپه خپل مخلوق ته متوجه کیږی له مشرک اوحاسد څخه علاوه نورو ټولو ته بخښنه کوی په یوبل روایت کښی راغلی دي چې له کینه ګر اوله ناحقه وژونکی څخه علاوه دنورو ته بخښنه کوی .

**تشریح** : دحدیث شریف حاصل دادی چې لوی خدای جل جلاله په دې مبارکه اومقدسه شپه کښی له خپل رحمته سره مخلوق ته متوجه کیږی ، رحمت یې دومره په جوش راځی چې خپل حقوق هم ورمعافوی ( بخښی ) اوانسان ته دومره مهلت ورکوی چې دخدای تعالی په بندګې عبادت

او طاعت کښې نیمګړتیا ولرې باید بشپړ یې کړي او دتیر وخت له اعمالو توبه وکاږي نو به یې توبه قبوله کړي. اوکه چېرې توبه ونه کاږي اوخپلو بدوعملو اوبد اعتقاد ته دوام ورکړي الله تعالی به یې پخپل عذاب مبتلا کړي. له حاسد (کینه ) څخه هغه شخص مراد دي اوپه خپله سینه بغیر له کومې شرعي وجې بلکه دخپلې نفسي تقاضا له وجې له چا سره حسد اوکینه کوي اوپه خپله سینه کښې دحسد اور بلوي داسې بدبخت انسان ددې مبارکې شپې له برکته څخه هم بې برخې دي داسې څوک به دخدای تعالی له رحمته اوبخښنې څخه بې برخې وي : ددې تفصیل په مختلفو احادیثو کښې راغلی دي .چې ددې شپې له برکته ، مشرک ، ناحقه قاتل اوکینه ګر بې برخې دي په ځینو روایتو کښې داهم راغلی دي چې صله رحمی قطع کونکی (له وروره ، قریبه او دوست سره تعلق نه ساتی ) هم الله تعالی نه بخښي .اوپه ځینو روایتونو کښې داهم راغلی دي چې پایڅې (پرتوګ ترپنډیو ) کښته کونکی ، دمورا وپلار نافرماني کونکی ، همیشه شراب څښونکی ، زانی ، اوپه ظلم محصول اخستونکی ، جاذوګر ، کاهن (دغیب خبرې کونکی ) اوسازنده اوباجه غږونکی پر دي ټولو دخدای تعالی درحمت نظر په دې مبارکه شپه کښې نه کیږي ( اعوذبالله خدای تعالی ته پخپل فضل کرم موږ ته هدایت وکړي اوله داسې خلګو څخه مو مه حسابوی. (مظاهر حق جدید ص۲۰۲ ج۲ ).

## دبې برخې خلګو لست

له مختلفو روایاتو څخه دبرات دپنځلسمې شپې فضیلت په روښانه توګه معلوم دي چې داشپه دالله تعالی په وړاندی مبارکه اوقیمتې شپه ده ، اوالله تعالی پرخپلو بندګانو عام رحمت کوی اوخاصه توجه لکن دارحمت پرهغو کسانو کوی چی هغوی هم ددې رحمت په انتظار ناست وي خپل

دنیوې اواخروې حاجات دلوی خدای تعالی په وړاندی عرضوی اولوی خدای جل جلاله یې ورپوره کوی لکن ځینی داسی سخت ګناهونه دي چې ترڅو ورڅخه توبه ونکړی سوال یې نه قبلیږی :

اول: مشرک دوهم: کینه ګر دریم: دمور او پلار نافرمان څلورم: زانی پنځم: شراب خور شپږم: کاهن اووم: صله رحمی قطع کونکی اتم: پرتوګ تر پنډیو لاندی کونکی. دلته دهر یوه په اړه څه تفصیل ته ضرورت دي:

**شرک** : دخدای تعالی په ذات او صفاتو کښی بل څوک شریک کول ، اوله هغه سره دمعبود په شان معامله کول اودهغه عبادت کول او نور .... دالله تعالی ارشاد دي( **إِنَّ اللَّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاءُ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْماً عَظِيماً**) (پاره ۵ سورة النساء)

**ژباړه** : بیشکه الله تعالی بخښنه نه کوی هغه چاته چی له الله تعالی سره شریک نیسی ، اوله دي لاندی نورو ته بخښنه کوی چی خوښه یې شی ،

دوهم ایت: (**وَإِذْ قَالَ لُقْمَانُ لاِبْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ لاَ تُشْرِكْ بِاللَّهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ١٣**) (سورة لقمان ـ پاره ۲۱)

**ژباړه** : اوکله چی لقمان وویل خپل زوی ته کله چی یې هغه ته نصیحت کوی ای زویه له الله تعالی سره شرک مه نیسه ځکه چی شریک نیول لوی ظلم دي له خدای جل جلاله سره شریک نیول داډیر لوی جرم او نافرمانې ده ، اودبخښنې قابل هم نه ده پرخپل ځان باندی تر دي بل لوی ظلم نشته چی همیشه په هلاکت اوبربادې کښی وي الله تعالی چې دځمکې او اسمانونو خالق دي ، دټولو مخلوقاتو مالک ، یوازې اوبې احتیاجه دي ، دهغه هیڅ

شریک نشته (( قل هو الله احد ) لوی خدای جل جلاله چی کریم اورحیم ذات دي داسې چاته مغفرت نه کوی . لکه څنګه چې دخدای تعالی له ذات سره شریک نیول ظلم عظیم دي ، همدارنګه دهغه له صفاتو کمالیه وو سره شریک نیول هم لویه ګناه ده . ( حقیقت شب برات ص ۱۹ )

## کینه څه ته وایې ؟

دیو مسلمان له بل مسلمان سره کینه کول بالکل ناروا ده اودخدای تعالی له رحمت څخه دلېرې کیدو سبب دي الله تعالی فرمایې:

(خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ ۱۹۹ ) (پاره ۹ سورة الاعراف)

عفوه او درګذر خوښه کړه ، په نیکې امر کوه اوله جاهلانو څخه ځان وژغوره ، له انسان څخه حتما خطایې کیږی که چېرې داسې وشول ، بیا معافې دالله تعالی ډیره خوښه ده ، څکه یې وفرمایل چی معافی (بخښنه ) اختیار کړه اوکه له بې عقلانو څخه چېرته کومه خبره درته وشی ، ځان ترینه وژغوره ، جنګ اوجدال مه ورسره کوه حدیث شریف کښی راغلی دي قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لاتباغضوا: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي: چی یوله بله سره بغض مه کوی.

**کینه** : کومې ته چې په عربی کښی حسد وایې تعریف یې داسې شوی دي کله چې له یوه دښمن څخه انتقام (بدله) اخیستل ممکن نوی ، دخپل قهر په راکنټرولولو سره پر زړه تکلیف راځی .بس ددې علاج دادی چی دخپل

مقابل شخص بدی ورمعاف کړه او راشه دړشه ورسر شروع کړه په یوځو ورځو کښې به ټول مشکل حل شی. (تعلیم الدین مولانا تهانوی رحمه الله ص ۵۸).
په حدیث شریف کښی راغلی دي چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلی دي چې تعلق ختم کونکی جنت ته نه شی داخیلدلای (بخاری ، مسلم)
له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چی په هره دوشنبه اوپنج شنبه دجنت دروازې خلاصیږی اوهر هغه بنده ته مغفرت (بخښنه) کیږی چی له خدای تعالی سره شریک ونه نیسی لکن هغه څوک لدي مغفرت څخه بې برخې دي چې دده اودمسلمان ورور په مینځ کښی کینه وي. (مشکوة ص ۴۲۷).
له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي: چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې په هره هفته کښی په دوشنبه اوپنج شنبه دټولو انسانانو اعمال خدای تعالی ته وړاندی کیږی ، اوهر مؤمن ته بخښنه کیږی ، مگر نه هغه خلګو ته چی یوله بل سره کینه ولری ، او ددې خبرې ډیر تائید کوو ، چی داخلګ دي کینه پریږدي اویوله بل سره دي ملاقات وکړی. (مشکوة شریف ص ۴۲۸)
په دې روایاتو کښی دکینه دبدعمل بیان شوی دي کوم چی په دنیا اواخرت کښی دهلاکت سبب دي خپل مینځې اړیکې خدای تعالی ته ډیرې خوښې دي ، که چیرې دڅه مشکل له وجې کوم خفګان پیښ شی ، باید ژر صلح وشې او چې اوږدنشې ، ددې لپاره ښه لاره سلام اچول دي چی دتعلق اومحبت یوازنی لاره ده .تر درو شپو او ورځو زیات باید تعلق پري نشې څکه چې په حدیث شریف کښی راغلی دي چی له خپل ورور (مسلمان) سره تر درو شپو او ورځو زیات خفګان کول حرام دي چې یو له بله په تریو تندی سره ګوری. *(مولانامحمد رفعت قاسمی)*

## صله رحمي قطع كول څه ته وايي؟

څرنګه چې دقريبانو اوخپلوانو حقوق پرموږ واجب دي . دهغو نه اداكول . له هغوی سره بده رويه (سلوک ) كول او تعلقات ختم كول دصله رحمي قطع كول دي. په احاديثو كښي دكينې ډير بدوالي ، راغلى دي . اوكينه ګر ته يې ډير بدويلى ، دنبي كريم صلى الله عليه وسلم وينا ده چې دوې ګنا وې ډيرې سختې دي چې كونكي ته يې په دنيا او هم اخرت كښي عذاب وركول كيږي (۱ )بغاوت (ظلم ) (۲ ) صله رحمي قطع كونكي (مشكوة شريف ).
په ډيرو احاديثو كښي راغلي دي چې الله تعالى فرمايلي دي: د(رحم ) لفظ دالله تعالى له پاک صفت رحمن څخه مشتق دي څوک چې . له چاسره رحم كوي رحمن پرهغه باندې رحم كوي ، اوڅوک چې له چاسره ، قطع كوي رحمن به له هغه قطع كوي ( فضائل صدقات ص ۲۱۹ ج ۱ ) فقيه ابو الليث رحمة الله عليه ويلي دي: چې صله رحمي قطع كول دومره بده ګناه ده چې دډيرې او مرتبې خاوندان هم دخداى تعالى له رحمته بې برخې كوي ، نوځكه دهر مسلمان لپاره لازمه ده چې ډير ژر له دې بده كاره توبه وكاړي اوكه يې چيرې عادت وي نو ضرور دې پريږدي او تعلق دې زيات كړي.
حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله تعالى عنه يوه وروځ دسهار له لمانځه وروسته يوه مجلس ته تشريف يووړ او ورته يې وويل: كه په تاسو كښي څوک دصله رحمي قطع كونكي وي لاړ دې شي ځكه چې موږ خداى تعالى ته سوال اودوعاوي كوو اوپر صله قطع كونكي دخداى تعالى درحمت دروازې بندې وي .وګورئ څومره دناراضئ ځاى دي ، شايد چې دعبدالله بن مسعود رضى الله تعالى عنه جنره دې دقران اواحاديثو په رڼا كې وي ددوعا په كولو كښي له صله رحمي نه توبه ضروري ده .كه چيرې دوعا په اجتماع سره كيږي ، ددوعاء په ادابو كښي داهم ده چې له داسې

گناهونو څخه به پاک وي چې دخدای تعالی رحمت وربانديی نه کیږی ،کله
چې دکینې دومره گناه ده چې په سبب سره یې بل څوک دخدای تعالی له
رحمته لېری کیږی نوپخلپه به دکینه گر څه حال وي ، همداراز ددې شخص
توبه نه قبلیږی ترڅو چې یې ځان ترې ساتلی نه وي. (حقیقت شب برات ص۲۴)
په خپلو مینځو کښې دښمنی کول ، ډیروخت دحق اوناحق په فرق کښې
غفلت وي ، دبل حق چې دکوم چا پرذمه وې هغه له نظره غورځوی ،
دشریعت پاک تعلیم دادی که چېرې ددوو وروڼو په خپل مینځ کښې کوم
تعصب پیدا شي باید په ایمانداری سره هر شخص خپلې گناه ته ځیر شي
اوخپله گناه تسلیم کړی اوتوبه ترینه وکاږی اوصلح وکړی .اوخپله ایمانې
جذبه باید رامخ ته کړی اوترټولو مخکې صلحې ته غاړه کښیږدي .خدای
تعالی چې انسان ته کوم جسم اوصورت ورکړی دایو امانت دي . انسان
ددې په سبب سره په نیک کار کښې پوره کوشش کولای شی ، بایدضائع
یې نکړی او کوم شخص چې داخیانت کوي بدیانتې کوی دخدای تعالی په
نزد داشخص لوی مجرم اوباغی دي ، کوم څوک چې دشپې له برکته څخه
بې برخې شي دنورو ډیرو سزاگانو مستحق گرځی. (الترغیب ص۳۲۰ ج ۳).

## تر پنډیو لاندې دپایڅو ځړول

تر پنډیو لاندې پرتوگ یا لنگ کول یا لوی لستوڼې جوړول یا لوشمله
پریښوول ، دبخاری اومسلم شریف په حدیث کښې راغلی دي چې نبی
کریم صلی الله علیه وسلم وویل : چې دخدای تعالی درحمت نظر پرهغو
خلگو نه کیږی چې پایڅې یا لنگ تر پنډیو لاندی کوی.

**دوهم** :په دوهم حدیث کښې ددې اندازه معلومه شوی ده ، چې نبی کریم
صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې : دکوم چا پرتوگ چې ترپنډیو لاندې وي
داشخص به په دوزخ کښې وي . (بخاری شریف ).

**دریم**: په دریم حدیث کښې دنورو جامو ځړول هم حرام بلل شوی دي نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي: چې اسبال ) یعنی اوږدول له خپلې اندازې څخه که پرتوګ وي که کرتی ، او لنګوټه نوداکه د تکبر له وجې اوږده وي الله تعالی ورته درحمت په نظر نه ګورې.ددې حدیث روایت ( ابو داؤد . نسائي اوابن ماجه کړی دي ) .او ددې په تائید کښی یوبل حدیث داسې دي چې کوم شخص خپلې جامې ځړولې وي خدای تعالی ورته درحمت په نظر نه ګوری( ددې حدیث روایت امام بخاری شریف کړی دي ) .په دې حدیث کښې مطلق کالې ذکر شوی دي ، مګر دپای په څو حدیثو کښی ذکر شوی دي.اودنورو جامو په هکله علماؤو محقیقنو ویلې چې لستونې ترګوتو تیریدل اوشمله ترنیمې ملا تیریدل داټول په اسبال کښی داخل دي او ممنوع دي .بعض کم فهم خلګ وایې چې داممنوع هغه وخت ده چې دتکبر له وجې وي که ځیرشو لمړی خو داویل غلط دي چې وایې موږ خوتکبر نه کوو، بیانو ولی داسې کوی ، سنت طریقه ولې نه اختیار وي ددې په اختیارولو کښی مو زړه ولی تنګیږی ، لنډې پایڅې مو ولی نه خوښیږی آیا داتکبر نه ده نوڅه ده ؟ بل په حدیث شریف کښی چې کوم دتکبر لفظ راغلی دي داقید اتفاقی ده احترازی نه ده څنګه چې یې اکثره خلګ دتکبر له وجې کوی نوځکه ( نبی کریم صلی الله علیه وسلم ) داقید ذکر کړ لکن دامطلق حرام دي په بل حدیث کښی چې دپنډیو حد معلوم شوی هلته پکښی دتکبر لفظ نشته مطلق ناروا ده که دتکبر له وجې وي اوکه بغیر دتکبر ، مګر که دتکبر له وجې وي بیا دوې ګنا وې شوی اوبیله تکبره یوه ګناه ده ، هسې دروا والی لپاره بانې مه لټوئ ، که څوک وایې چې دامطلق ( بغیر له قیده دتکبر ) موږ په مقید (سره له قیده

دتکبره ) حمل کوو . ددې خواب په اصول فقه حنفي کښې شوی چې مطلق پرخپل اطلاق پاته دي . غرض داچې دروا والی لپاره هيڅ صورت نشته.
ځينې خلگ په لمانځه کښې پایڅې یانور کالي برابر وي لکن له لمانځه نه بغير هم له ګناه څخه ځان ساتل پکار ده بعض خلگ پايڅې غټې ( اوږدې ) جوړ وې خوبيا يې په لمانځه کښې بيرته راټولوي مگر اصلا په وخت ضائع کولو کې ګناه ده که پنډی پټې وي که ښکاره ، او خياط ته هم داسې کالي جوړول جائز نه دي ځکه چې په ګناه کښې کومک کول هم ګناه ده ، بايد ټول خياطان داسې ناروا کالي جوړ نکړي له خدای تعالی څخه دي حلاله روزي ( رزق ) طلب کړی. (اصلاح الرسوم ص ۲۸).

## دشپې شرعی حکم

دناروا رواجو څخه تصوير (عکس ) اوسپی بلا ضرورته ساتل هم شامل دي دبخاری اومسلم شريف په حديث کښې راغلی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلې دي چې هغه کورته درحمت ملائکې نه داخليږی چې پکښې سپی ياعکس وي ،نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلې چې ترټولو غټه ګناه تصوير جوړول دي يوه حديث کښې راځی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلې چې ترټولو غټه ګناه تصوير جوړول دي ، يوه حديث شريف کښې راځی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويلې : څوک له دريو غرضو بغير سپی ساتی.
اول: دمال ( پيسو ) دحفاظت لپاره
دوهم: دښکار لپاره دريم:
دکور يا کښت دحفاظت لپاره دهغه له ثوابه هره ورځ يو قيراط کميږی (دقيراط اندازه په حديث کښې داحد دغره په مثال ده ) داحديث په بخاری شريف اومسلم کښې راغلی په دي احاديثو کښې تصوير جوړول ، تصوير

ښوول بغير له ضرورته سپي درول حرام ثابت شوي دي دجديد تهذيب په لوازمو كي بلل شوي وي لړ حقيقت ته ځير شئ ، له دي دواړو شيانوڅخه پوره ځان وساتئ دبعض خلكو عقلونه دې حال ته رارسيدلي دي چې دسپيو صفات حميده (ښه صفات ) بيانوی اودممانعت لاره بند وي خو په پته كي حكم شرعی لغو كوي خوكه دچاداخيال وي نو دايمان دنوی كولو ضرورت ورته شته . له مسلمانيدو وروسته دشرعي احكامو دعلت پوښتنه ( طلب ) كول مناسب نه دي ډير مجازی (دنيوی ) احكام په علت سره نه معلوميږی ، بې له علته يې منل لازم دي دحاكم حقيقي لوی خدای تعالى په حكم كښی ولی څه څوک ويل وكړی ؟كه څوک ووايې چې زموږ ددين احكام له عقل سره برابر دي ، مگر ددې ځواب دادي چی له عقل سره برابر دي مگر بعض احكام ته عقل نه شی رسيدلای ،مثلا ډير شيان په سترگو ليدل كيږی مگر په صحيح توگه يې سترگی ادراک شې كولای ، دادعقل كار دي چې داحكامو علت وپيژنی . داعقل دانبياء عليهم السلام دكامل اولياء اودعلماء راسخينو عقل وو چې دلوی خدای تعالى خاص رحمت وو . دعامو خلكو په عقل كښی دومره قوت نشته . اوددې زماني متعلمين دعامو له صفه نه وزي .داچې له دې څخه ددين اصول مراد دي چې دا عقلي دي يعنی : څوک چې قران كريم اوحديث نه منی ، پرتوحيد ( دالله تعالى پريوازی ذات ) اورسالت ايمان يې علم په دليل عقلی سره هم ثابتيږی اوفروعی شيان يعنی فلانكی شی ولی حرام دي فلانكی ولی حلال دي داسې شيان په عقل سره ثابتول ضروري نه ده بلكه ددې منل په دليل شرعی سره پكار ده ، اودعقل موافقه هم داخبره ده چې حاكم ، حاكم منل په دلائل مختلفه ؤسره كله چې حاكم په حاكم ومنل شی ، بيا دهغه دهرحكم دلائل پوښتل يوقسم بغاوت ( نافرماني ) ده يعنی چې كله خدای تعالی

ومنی ایمان ورباندی راوړي بیا باید دهغه هرحکم ومنل شي ، اوعلت يې ونه پوښتل شي ځکه چې دنیایې قوانین په وجه اوعلت سره زموږ په ذهن کښې نه راځی مطلب غرض داچې شرعي حکم بې له کومې نزاع څخه منل واجب دي هو . وروسته له منلو څخه دکوم حکمت لپاره که تحقیق وشی داجائز دي بعض خلگ حیله جوړ وي چې موږ سپی دحفاظت لپاره ساتو ، لکن پوه شئ چې الله تعالی په هرنیت عالم اوپوه دي که چېرې فقط یوازې دطبعیت برابرولو لپاره ساتل کیږي دابالکل حرام دي سپی خوهغه څوک ساتی چې پیره دار بې نوی خپل مال . کور اوپسونه ورباندی ساتې نن سبا خو الحمد الله دهرچا پیره دار شته نود سپی څه ضروت دي ؟
همداشان دښکار تمام اسباب شته ، لکه: کلاشینکوف . توپک اوتوپنچه ، نوولی سپی څوک وساتی ؟ (اصلاح الرسوم ص ۳۰ از حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه)

## دتصویر شرعي حکم

ځینی خلگ وایې چې ناجائز خو پوره (مکمل) تصویر دي موږ خونصف تصویر جوړ وو او ساتويې نوځکه داجائز دي کله چې په تصویر کښی داسې عضو(اندام ) نه وي چې بغیر له هغه ژوند ممکن نوی داجائز دي حقیقت دادي چې عکس (تصویر ) ترهغوپوری ناجائز دي چې ترڅو دهغه حیوان شکل ته بند معلومیږي . مثلا که دانسان نمایې تصویر واخیستل شی چې مخ اونوری اعضاوي يې معلومیږي دابالکل حرام وي ، اوداسی نورحیوانات .ځینی خلگ اعتراضات کوي چې دروپو ( پیسو ) عکسو نه هم باید ناجائز شي ځکه له هغه څخه هم انسان معلومیږي ؟
ځواب دادي چې دلته اشد (سخت ) ضرورت دي اودضرورت په وخت کښی مکلفیت کمیږي او نور خلگ یوازې دشوق لپاره سپی ساتې چې داقطعا حرام دي. (اصلاح الرسوم ص۳۱ ).

**مسئله** : په کوم کور کښې چې سپی سور (خنزير) ، شراب ، زاني یا زانيه او تصوير (عکس) وي داسې کور ته د رحمت ملائکه نه داخليږي.
(غنية الطالبين ص ۳۸۰).

## دنجوم علم

حضرت عبدالله ابن عباس له نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوي: چې چادعلم نجوم يوڅه برخه چې د شريعت مخالفه وي حاصل کړي ګواکې دي شخص جادو حاصل کړ اونجومي کاهن دي کاهن جادوګر دي او جادوګر کافر دي . (مشکوة ص ۳۹۴).

له حضرت ابوهريرة رضی الله تعالی عنه څخه روايت دي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم وويل : ( **ومن سحر فقداشرك** ،

**ژباړه** : چاچې جادووکړ هغه مشرک شو. (نسائي شريف ص ۱۷۱ ج ۲ ).

جادو اوداسې نور تمام (ټول) دشرک اوکفر ښاخونه دي کوم چې بالکل حرام دي همداشان جادو کول هم حرام دي اوبل چاته جادو ورکول هم حرام دي نن سبادعامو خلکوباوجود خواص هم په دي مهلک مرض کښې مبتلا دي .چيرې چې له چاسره يې دښمنې وې ياکومه بله خبره وي ، ضرور جادو ورباندی کوی اودخپل زړه براس ورباندی کاږی ښځينه مخلوق هم په دې کښې مبتلا ( اخته ) دي کله چې معلومې خبرې مخ ته راشې ضرورمندې وهي اوداجادو کوی که چيرې يوه مسلمان ته کوم ضرر ورسيده مخکې وعيد ونه ورته راجمع کيږی اوداکار قطعا ناجائز اوحرام دي .لدې ټولو شيانو څخه ځان ساتل پکار ده ، څوک چې داکار کوی هغه هم سخت ګنهګار دي اوپر دې باندی اجرت (مزدورې ) اخېستل او ورکول دواړه حرام دي . (حقيقت شب برات ص ۱۵).

## دشراب څښلو حکم

اسلام شراب اوهره نشه کونکی شی حرام کړی دي ، په قران کريم اواحاديثو کښې ددې حرمت مفصل بيان شوی دي.

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوٓا۟ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۹۰ ) (پاره ۷ رکوع ۲)

ژباړه اي هغو کسانوچې ايمان موراوړي بې شکه شراب ، خمار ، اوبت پرستی ټول بدله کارونو دشيطان څخه دي نو پرهيز ترينه وکړئ بنايې چې خلاصون ومومئ. په مشکوة شريف ص (۳۸۲) کښې حضرت ابن عباس له نبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوی چی: ( **کل مسکر حرام** ) هرنشه کونکی شی حرام دي.

له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنه څخه روايت دي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وويل: احسان اچونکی ، دمور اوپلار نافرمانې کونکی اوشراب څښونکی به جنت ته نه داخليږی ( مشکوة شريف ص ۴۲۰ ) په يوه بل حديث کښی دنبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه ارشاد دي: چی پر دريو خلکو جنت حرام دي له هغو څخه يو شراب خوردي (مشکوة شريف ص ۳۶۸)

## دغيب ويونکی حکم

په حقيقت کښی علم غيب د خدای تعالی ذاتې صفت دي له الله تعالی څخه بغير علم غيب په خپله اصطلاحې معنی دبل چا لپاره نشته نوځکه دغيب خبرې ويل اوپلټل يې په هره طريقه چې وي صحيح نه دي شريعت بالکل حرام بللی دي ، په قران کريم اواحاديثو کښی ددې تفصيل راغلی دي چې

علم غیب یوازې خدای تعالی لره ثابت دي د لوی خدای تعالی فرمان دي چې ((إِنَّ اللّٰهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ)) (پاره ۲۱ سورة لقمن).
په احادیثو کښې پرداسې شخص چې دعلم غیب خبرې پوښتي اوبل چاته بې وایي سخت عذاب راغلی دي له حضرت حفصې رضی الله عنها څخه روایت دي: چې څوک دهغه چا څنګ ته راشي چې هغه دعلم غیب خبرې کوی او له هغه څخه کومه خبره وپوښتي ددې شخص لمونځ (۴۰) ورځې نه قبلیږي (مشکوة ص ۳۹۳).

## دمور اوپلار نافرماني کونکی حکم

دانسان په تربیه کښې دمور اوپلار درجه له ټولو انسانانو څخه لوړه ده. نوځکه هر راز نیکي او ښه رویه له مور اوپلار سره پکار ده. په خاصه توګه چې کله یوله دوی څخه بوډا شی. په داسې حالت کښې لازمه ده چې هر راز خدمت او په نرمې سره خبرې وشی، په ژبه لاس او پښو ددوی په وړاندی هیڅ دبد تمیزی اظهار باید و شی، بلکه ددوی مخکې حقوق یادکړی او دمغفرت دوعا ورته وکړي. مور اوپلار دخپلو بچیانو په ډیر شفقت سره حفاظت کوی نو پکار ده چې نن دهغوی هر ارخیز خدمت او شفقت وربانـدی وشی او په هر حالت دهغوی خدمت وشی یوازې خدمت نه بلکه له لوی خدای جل جلاله څخه دمغفرت دوعاوې هم ورته شي دمور اوپلار سره دښه سلوک په باره کښې بی شمیره صحیح احایث راغلی دی چې مور ور څخه څو رااخلو: امام احمداومسلم دابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه نقل کوی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ذلیل دی وې هغه څوک چې ورسره مور اوپلار یا یو له دوی څخه ژوندی وی بیا هم جنت ته داخل نشي (یعنی ددوی خدمت او فرمانبرداری ونکړي) یو صحابی دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او ویې ویل ای

دخدای جل جلاله رسوله ! ما دجهاد اراده کړی ده او ستا سره مشوره کوم ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل چی ستا مور شته؟
صحابی ورته وویل هو (شته) بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل دمور خدمت پرتا لازم ده هغه وکړه جنت دهغې ترپښو لاندې ده په مختلفو مجالسو کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم داحدیث دوه واره ویلي دي (رواه النسائی وابن ماجه).
نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلی دي چې دخدای تعالی رضاء دمور اوپلار په رضا مندي کښې ده ، دالله تعالی نارضائی دمور اوپلار په نارضائی کی ده . (ترمذی تفسیر بیان السبحان ص ۳۹۵ ج ۲).

## دشعبان (برات) دروژې ثبوت

وعن علی رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاکانت لیلة النصف من شعبان فقوموا لیلها وصوموا یومها فان الله تعالی ینزل فیها بغروب الشمس الی السماء الدنیا فیقول الا من مستغفر فاغفر له الا مسترزق فارزقه الا مبتلی فاعافیه الا کذا وکذا حتی یطلع الفجر (رواه ابن ماجة)
**ژباړه** :له حضرت علی رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل : کله چې دنصف شعبان شپه راشی ( دبرات پنځلسمه شپه ) په شپه یې لمونځ وکړئ او په ورځ یې روژه نیسی ځکه چې لوی خدای تعالی په دي شپه ترلمر ولیدو وروسته ددنیا اسمان ته تشریف راوړی ( یعنی له خپله خاص رحمته سره توجه کوي ) او ددنیا خلګو ته وایې چې خبر اوسئ ! کوم دمغفرت غوښتونکی شته چې زه بخښه ورته وکړم ؟ خبر اوسئ ! کوم درزق غوښتونکی شته چې ورته رزق ورکړم ؟ خبر اوسئ ! کوم مصیبت زده شته چې ورنه خلاص یې کړم ؟ خبراوسئ ! داسې اوداسې ( یعنی الله تعالی دهر شپې نوم اخلی اوبنده ته اواز کوی مثلا )

وايي آياشته کوم غوښتونکی چې څه ورکړم ؟ آيا شته کوم غمجن چې خوشحاله يې کړم ؟ اوداسې نور دادرحمت اوازونه به جارې وې ترصبح صادق پورې (ابن ماجه).

**تشريح** : دبرات دشپې دنعمتونو اوفضيلتونو څومره لوړ مقام دی؟
داهغه مقدسه شپه ده چې لوی خدای تعالی دخپل خاص رحمت سره ددنيا اسمان ته تشريف راوړي خپل بندګان وخپل رحمت عامه ته رابولی ، بشارت دي هغه نيکبخته انسانانوته کوم چې په دې مبارکه شپه کښې دلوی خدای تعالی درحمت سيوري ته ناست وي . عبادت اوبندګې کوی ، دخدای تعالی په وړاندی خپل ضرورتونه اوحاجتونه وړاندی کوی اوخدای تعالی په خپل رحمت سره دهغوی سوالونه قبلوی .افسوس دی پرهغو انسانانو چې ددې مبارکې شپې استقبال په عبث کارو کوی په آتش بازی (په اورو ) کوم بد فعل دي خپله نيکبختې اوسعادت له لاسه ورکوی خدای تعالی دې موږ اوتاسې ته توفيق راکړی چې دبرات دشپې دفضيلت احساس وکړو ددې شپې دتقديس اوپاکوالی احترام وکړو . ټوله شپه په اخلاص سره دخدای تعالی په عبادت اوبندګې کښې مشغول شو ترڅو دلوی خدای تعالی درحمت عامه جوګه شو . (مظاهر حق جديد ص۲۰۱ ج۲).

## دبرات دشپې دروژې نيولو وجه

عن اسامة بن زيدرضی الله عنهما قال قلت يارسول الله لم ارک تصوم من شهر من الشهور ماتصوم من شعبان قال ذاک شهر يغفل الناس عنه بين رجب ورمضان وهوشهر ترفع فيه الاعمال الی رب العالمين واحب ان يرفع عملی وانا صائم (رواه النسائی )

**ژباړه** : له حضرت اسامه بن زید رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې
ماله نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه ! چې ای دخدای
تعالی رسوله ! ته چې د شعبان په میاشت کښې کومې روژې نیسې په بله
کي میاشت ماستا دومره روژې نه دي لیدلې ؟ نبی کریم صلی الله علیه
وسلم ووېل ! دادرجب اورمضان ترمینځ میاشت ده اکثره خلګ ترینه
غافل دی په دې میاشت کښی دخدای تعالی حضورته دبندګانو اعمال
وړاندی کیږی . زه داخوښوم چې کله زما اعمال خدای تعالی ته وړاندی
کیږی او زه روژه داریم .په یوه بل روایت کښی داالفاظ راغلی دې چې په
دې میاشت کښی دټولو مړه کیدونکو خلګو دمرګ فیصله کیږی زه
داخوښوم چې کله زما دمرګ فیصله کیږی او زه روژه داریم.

**تشریح** درمضان المبارک میاشت خوترټولو میاشتو افضله میاشت ده
درجب میاشت هم یوه له اشهر حرم څخه ده ذی القعده ذی الحجة محرم
اورجب داسلام نه مخکې هم ددې میاشتې زیات قدر کیدی اوشعبان ددوو
مبارکو میاشتو په مینځ کښی دي پخپله دشعبان هم زیات فضائل دي
تردې چې ترمذی اوبهیقی دحدیثو مشهور کتابونه دي ) له انس رضی الله
تعالی عنه څخه دنبی کریم صلی الله علیه وسلم داقول نقل دي : چې له
رمضان المبارک څخه وروسته ترټولو دقدرو روژې دشعبان دي چې
دروژې لپاره تیاری ده . څکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم غوښتل چې
خلګ دامیاشت په غفلت کښی تیره نکړی لکه څنګه چې سنت دفرض
لمانځه دنقصاناتو پوره کونکی دي . همداراز دشعبان روژه درمضان
المبارک دروژو لپاره پوره کیدونکي ده. په شعبان کښی دنبی کریم صلی
الله علیه وسلم دپرله پسې روژو یوه وجه داهم وه چې دحضرت محمد
صلی الله علیه وسلم عادت وو چې په هره میاشت کښی بې (۳) درې

روژې نیولې اوکله به یې پرېښودلې هم . خوبیا به یې یوځای په شعبان کښې نیولې. دشعبان په میاشت کښې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دروژو په باره کې روایات مختلف دي داهم ثابته ده چې اکثره شعبان نبی کریم صلی الله علیه وسلم روژې نیولې اویه یوه روایت کې داهم راغلی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم له رمضان المبارک څخه علاوه نوری میاشتی هم بشپړه میاشت روژی ندی نیولی. ځکه چې د علماؤپه دي روایت کښې له ټولې میاشتې څخه اکثره مراد دي ، داهم ممکنه ده چې په کوم کال یې ټول شعبان روژې نیولې وي . اوپه کوم کال یې یوه برخه نیولې وي (الترغیب والترهیب ص ۳۵۲ ج ۲)

## دښځو دنفلي روژو حکم

**عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لایحل لامرأة ان تصوم وزوجها شاهدالا باذنه**

**ژباړه** :له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي: چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي: چې دښځو لپاره رواند چې دخپل میړه په موجودګې کښی دهغه له اجازې بغیر روژې ونیسې ،ا وپه یوه روایت کښی راغلی دی چې درمضان المبارک له روژو بغیر نورې روژې دي پرېږدي .

**تشریح** : دنفلې روژې لپاره که په ژبه سره اجازه واخلی دااولی ده اوکه چېری دښځې دایقین وې چې که زه چېرې روژه ونیسم خاوند مې نه خفه کیږی اویا داچی مخکې یې ترې اجازه اخیستې وي او اوس دنوې اجازې ضرورت نه وینی .اودنفلې روژې دممانعت وجه داده چې نه ده معلومه چې

کوم وخت یې خاوند مانع شي . البته درمضان المبارک روژې فرض دي دهغه لپاره داجازې ضرورت نشته . (الترغیب والترهیب ص ۳۸۳ ج ۲)

## په عبادت کښې ولې خوب راځي ؟

خوب په یوازیوالی کښی سړی ته راځي . په ساتیرۍ او سیل کښې یوازیوالې نه وي په هرځ کښې یې جلاجلا خوند وي ځکه په هغه کښې توجه بدلیږي اوتوجه تقسیمیږي ځکه خوب نه راځي . له لمانځه ښخه بغیر . کله چې په لمانځه شروع وشي . موږ په دې پوهیږو چې دفکر اوسوچ ضروت نشته خو دچا په اختیار کښې نه راځي . لکه دساعت کیلې چې پخپله چلیږي ځکه نو په لمانځه کښې یورنګه یوازیوالې راځي ځکه خوب هم ورسره راځي . همداشان کله چې وعظ ( نصیحت ) شروع شي اوڅوک وزته غوږ شي داهم یوقسم یوازیوالی دي چې خوب انسان ته وروليٍ اوپه ساتیرۍ اوسیل کښې توجه بدلیږي ځکه خوب انسان ته نه ورځي مطلب داچې په یوازیوالې کښې خوب انسان ته پیښیږي . (التبلیغ ص ۱۲۵ ج ۸ ، ۲۱)

## په عبادت کښې دخوب نه راتللو طریقه

په عبادت کښې دخوب نه راتللو تدبیر دادي چې متفرق اعمال کول پکار دي ترڅو چې توجه بدله شي یوڅه برخه نوافل ادا کړي ، تلاوت وکړي ، ذکر وکړي ، بیا وعظ (نصیحت ) شروع کړي اویا یې له بل چا څخه واوري ښه طریقه داده چې دخپل کور خلګ راټول کړل شي اوعبادت په مشترک ډول وشي که ټوله شپه نشي کښېنستلای خوب مو غالب وي اواکثره برخه کښېنستلای شئ بیا هم دشب قدر فضیلت موندلای شئ باید له سستی ځخه ځان وژغورئ او دخوب نه راتللو تدبیر هم وکړئ مثلا داچې دشپې په دوړه کښې کموالی راولئ . بیا هم که ضرورت پیداشو ( تورمرچ ) وژویاست له دې ځخه هم خوب تښتي که هرتدبیر دخوب دختمولو وي باید

و شې بيا هم له دې ټولو سره سره که خوب ډېر وو په دې وخت کښې داخوب معتبر دي ( يعنې بيا ويده شئ ) داسې نه چې معمولې غوندې خوب درته پېښ شي اوتاسو ويده شئ .دخوب غلبه داسې ده چې د يوچا په قصه هغه ددې پر ځاى :کريما ببخشا يى برحال ما ) دخوب په حالت کښې ويل ( ارى مان) (التبليغ ص ۱۲۷ ج ۸ ).

مطلب داچه که چېرې معمولې غوندې ارږمې راشي ديته هيڅ اعتبار نشته بلکه دخوب د ډېروالې په وجه په ويلو کښې فرق راځي آن داچې دبعض الفاظو معنې هم بدله شي که چېرې داسې حالتؤ بايد ويده شي . ځکه چې داعمالو دارو مدار په نيت موقوف دي په داسې حالت کښې هيڅ مکلفيت نشته اواميد دي چې پوره ثواب به الله تعالى ورکړى . دعبادت شروع ( پيل ) دشپې په لمړۍ برخه کښې وکړى ځکه چې دشپې په اخيره کښې دهغه چا عبادت افضل چې پورته کيدل ورته اسانه وي ، يا اميد لرى چې پورته به شم. (مولانا محمد رفعت قاسمى )

## دپورته کيدلو طريقه

دخوب نه راتللو لپاره په متفرق عبادتونو کښې مشغول شئ له چاسره مختصره (کوتاه ) خبره هم کولاى شئ ( کوم چې غيبت اوداسې نورڅه نه وي ) لکه داچې وواښې له ډوډۍ سره کله کله ( مربا ) اچار اوسرکه هم خوند کوی ، په داسې اندازه خبر وکښې کوم ممانعت هم نشته .داسې نه چې ټول وخت په خبرو تير کړې .ځکه چې يوازې پورته کيدل مقصود نه دي عبادت مقصود دي ځکه چې مايوڅوک وليدی چې يوازې دويښتوب لپاره بې ( افيون ) خوړل چې له شريعت څخه مخالف کار دي په داسې کښېنستلو کښې څه فايده ده ، داهيڅکله نه ده پکار . کښېنستل خودعبادت لپاره دي لکن دطبعيت دسمولو لپاره لږ لږ خبرې هم جائز دي . لکه څنګه چې نبی

کریم صلی الله علیه وسلم له حضرت عائشې رضی الله عنها سره خبرې کولې ، دهغه هم خبرې مقصود نه وې ، لکه دطبعیت دسمولو لپاره یې داسې کول همداشان نفس بنه په قبضه کښې راولئ او پورته شئ (السلوم ۴۲ ج ۸)
بعض خلک وایي چې ټوله شپه پورته کیدل مشکل دي او یوڅه برخه پورته کیدلو کښې څه فائده ده ؟ داخیال غلط دي ځکه چې که اکثره شپه عبادت و شې بیاهم دافضیلت حاصلیږی او ټوله شپه پورته کیدل هم کوم مشکل کار ندي ځکه چې په حکومتي مسؤلیت . په تجارت اوپه نورو دنیوی کاروکښې ډیرې شپې متصلې ویښې وي . اودافخر کوی چې زه دومره شپې ویښ پاتې شوی یم لږ فکر پکار ده چې دنیر کال په دې مبارکه شپه ، کوم خلک وو چې نن په دنیا کښې نشته ، اوهغه مبارکه شپه دهغوی لپاره اخېری شپه وه اوله موږ څخه به چاته اجل راشی اوله دې مبارکې شپې څخه به محروم شو هرهوښیار انسان پوهیږی چې په راتلونکې کښې دضرورت اوس انتظام پکار دي دیخ لپاره تاوده ( ګرم ) کالي پخوا لا پیدا کول پکار دي دواده اوداسې نورومراسمو لامخکی تیاری پکار ده نوآیا دمرګ لپاره به تر مرګ وروسته تیاری کوي ؟ داسې نه دی تاسې فکر وکړئ چې کله دامضمون لولئ له دې څخه وروسته په کوم ساعت اوکومه ورځ یقین لرئ چې ته به ژوندی یې ؟ په ژوند کښې داسهار اومابنام دي چې باید پکښې عبادت و شی ، بس که هره ورځ مرګ راغی بیا هیڅ نشو کولاي . همدا اوس زموږ دکامیابۍ اوناکامۍ فیصله پخپله زموږ په لاسو کښې ده څنګه چې موږ غواړو فیصله کولای شو. ځکه چې خدای تعالی راکړی وخت موجود دي دادنیا دارالعمل (دعمل ځای ) ده. محمدرفعت قاسمی غفرله.

## دشریعت مقصود

که اربړمې داسې شوی چې له خوب څخه بې اختیاره شوې بس نور ویدیږئ ځکه چې ارشاد مبارک دي ( فلیرقد ) بیا دي ویده شی ) په داسې وخت کښې ویدیدل فضیلت دي په هرصورت دخدای تعالی بندګی مقصود ده که په خوب کښې وي اوکه په ویښه . خپل ځان خدای تعالی ته وسپارئ څرنګه چې حکم وي هغه سې وکړئ . مطلب داچې دنفس لپاره هیڅ مه کوئ دخدای تعالی چې څنګه حکم وې هغه سې وکړئ اصلا عبدیت مقصود ده نور هیڅ شی بالذات مقصود نه ده ځینی وختونه لمونځ اداکول منع دي .(التبلیغ ص ۴۴ ).

## په مبارکو شپو کښی په مساجدو کښی اجتماع

**سوال**: دشعبان په پنځلسمه ، اخترونو اودرمضان المبارک په لسو اخیرو کښی چې په مساجدو کښی خلګ یوځای کیږی ( یوعام رواج دي ) ذکر ، تلاوت اوداسی نور عبادات کوی ددې شرعا څه حکم دي ؟

**ځواب**: په دې مبارکو شپو کښی په مسجد کې دعبادت درې طریقې دي:

**اول**: چې مسجد ته اتفاقا راشی دعبادت په نیت نه اوبیا ذکر ، تلاوت اوبل عبادت شروع کړی ، داجائز ده . لیکن اولی داده چې دانوافل اوذکر که په کور کښی وشې ترمسجد زیات ثواب لری آن داچې ترمسجد حرام اومسجد نبوی صلی الله علیه وسلم هم نوافل په کور کښی ډیر ثواب لری . او دا په حدیث سره ثابت دي.

**دوهم** : داچې قصدا مسجد ته راشې دنوافلو لپاره . دابدعت دي ځکه چې دنوافلو لپاره مسجد ته راتلل دامعنی ورکوی چې نوافل په مسجد کښی زیات ثواب لری اودا پر شریعت زیادت دي : بلکه دخدای تعالی

او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم مقابله ده څکه په حدیثو کښې په صراحت ذکر شوی چې نوافل په کور کښې زیات ثواب لري.

**دریم** : په خاصو شپو کښې په هیئت اجتماعیه دعباداتو کول په مساجدو کښې. مثلا : نوافل په جماعت کیږي یا تقریرونه . داصورت بدعت دي . له بله جهته هم داډیر بد دي یوه خرابي خوداوه چې په نمبر۲ کښې ذکر شوه . بل داچې نفلي عبادت په جمع کیږي او داشرعا منع دي.

بعض خلک وایي چې په کور کښې دماشومانو شور وي او ژاړي څکه موږ په اطمینان سره عبادت نشو کولای . دادشیطان یوفریب دي . اصلا د(خشوع) نوم دادي چې دسنت طریقې موافق عبادت کول . که چیرې له سنت طریقې سره برابر لمونځ وکړي . خشوع او خضوع پخپله پکښې راځي که چیرې کښته اوپور ته شي اوهئیت دخشوع اوژړا اختیار کړي ، دشریعت له نظره دیته خشوع نه ویل کیږي. دغور ځای دي چې کریم صلی الله علیه وسلم به له ډیرې سختې مجبورتیا سره سره نفل تهجد وغیره په کور کښې کول اوزیات ثواب یې درلوده . اوموږ نن صبادا بهانه کوو چې په کور کښې مو توجه نه برابریږي ، داپه ښکاره دشیطان فریب دي په حدیث شریف کښې راځي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم پخپله مبارکه حجره کښې نفل کول او حضرت عائشة رضی الله عنها پښې غزولې وي کله چې به حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سجدې ته راغی دهغې پښې به یې ونښورولی هغې به لیرې کړې ده به سجده وکړه کله چې به حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دوهم رکعت ته ولاړ شو دي به بیرته پښې وغزولې ، په توره شپه کښې چې څراغ به هم نه وو خونه به هم دومره پراخه نه وه چې یو کس پریوزې اوبل سجده ولګوی . اومسجد نبوی صلی الله علیه وسلم هم دومره نژدې وو چې له خونې پښه راوباسي مسجد دي ، اومسجدهم

مسجدنبوی صلی الله علیه وسلم ووچی فضیلت یې هرچاته ښکاره دي له دې ټولو سره سره دنبی کریم صلی الله علیه وسلم عمل داؤ چې په کور کښې یې عبادت کاوو اومسجد ته به نه تلی . بعض خلګ داوایې چې په کور کښې یوازې په لمانځه کښې انسان ته خوب ورځی ، که چېرې په مسجد کښې په هئیت اجتماعی سره نوافل شی ، یوځه تقریرونه ، یوځه نفل په جمع سره نوخوب ختمیږی اوداشان عبادت هم ډیر کیږی ، که چېرې په کور کښې نوافل اوداسې نور یوازې وشی ددې نیمائی هم نه کیږی لږغور وکړئ چې ډیروالی دعبادت اودهغه کمیت مقصود نه ده بلکه دعبادت پر څرنګه والی موقوف دې ، که چېرې یوځه وخت په عبادت کښې مشغول واوسې اوچې کله خوب درغی استراحت وکړه.داله حدیث څخه ثابته ده (احسن الفتاوی ص ۳۷۳ ج ۱)

## نفل لمونځ کول په کور کښی افضل دي

لدې سره سره چې په مسجد نبوی کښې یو لمونځ په زر واره ترنورو لمونځو ډیر ثواب لری لکن نفل لمونځ په کور کښې ترمسجد نبوی ډیرثواب لری ځکه چې په کور کښې لمونځ کول بالکل له ریاء څخه پاک اوخلاص دي (مظاهر حق جدید ص ۱۹۲ ج ۲).

**مسئله** : نوافل په جماعت سره که تهجد وی یا بغیر له تهجده صلوة تراویح ،صلوة کسوف.استسقاء کچېری څلور نفره ؤ په نزد دحنفی علماؤ مکروه تحریمی دی ، که مجمع وی او یا په طلب دجمعی وی په دریو کی اختلاف دی او په دوو کی کراهت نشته. (فتاوی رشیدیه ص ۲۹۹)

**مسئله** : که چېری مقتدیان په جماعت کی څلور شی نو دا بالاتفاق مکروه تحریمي دی (طحطاوی علی مراقی الفلاح ص ۲۱۱ وشامی ص ۵۲۴ جلد اول)

**مسئله** : که چېرې دامام له صراحتا کنايتا او اشارتا اجازې پرته خلګ ورسره شريک شول نو دکراهيت په صورت کې مقتديان مسئول دي ليکن امام ته پکار ده چې مسئله ورته ووايي اوله شراکت څخه يې منع کړي . کنه نو ملا صاحب مسئول دی. په شامي کې راغلي دي چې په نفل کونکو کې له يوه يا دوو څخه وروسته که نور خلګ شريک شول نو علامه رحمه الله وايي چې دکراهيت مسئوليت وروسته خلګو ته راجع دي.
(فتاوی رحيميه ص ۳۲۵ ج ۴ بحواله شامي ص ۲۲۴ ج ۱)

## په مبارکو شپوکې مسجد ښائسته کول

دبرات يا قدر او داسې نورو شپو کې مسجد ښائسته کول يا روزمره تر حاجت زيات څراغونه ياېتي، لګول دزياتې رڼا لپاره جائز نه ده پر ډېرو مفاسدو او بدعاتو مشتمل دی. اول داچې تر ټولو خرابيو مخکې بايد هغه اعمال صحيح شي چې نر څراغ بلولو مخکې وې که چېرې دافرض شي چې دمساجدو داسې ښائسته کول مستحب او اولی هم شي بيا هم په خاصو شپو کې لکه د برات او قدر و غيره کې دداسې شيانو خاص اهتمام کول بدعت دی ځکه چې دنبي کريم صلی الله عليه وسلم له سپيڅلي عهد څخه نيولی بيا تر ټولو قرونو مشهود لها بالخيراو دټولو علماء دين او صلحاؤو په ښه زمانه کې ددې کوم مثال ندی ليدل شوی که چېرې دادکوم ثواب کار وای نو نبي کريم صلی الله عليه وسلم ترټولو زيات ددې مستحق وو چې عملا او قولا يې ددې دعوت ورکړی وای ، او صحابه کرام تر ټولو زيات مستحق ددې وو چې دايې قبول کړی وای ډېر زيات څراغونه بلول ضرورت هغه وخت وو چې تلاوتونه کيدل او په وار وار قرانونه ختميدل داڅراغونه

هغه وخت هم وو دصحابه کرامو او تابعینو په زمانه کې چې دقران جمع او دقران کتابت وسو وروسته له دې وخراغ ته لا ډیر ضرورت پیدا شو .کله چې هغو محترمو داضرورت ضرورت نه وباله بلکه نفس اجتماع په مساجدو کې یې ځان ساتلی دی. نواوس به چاته داحق پیداشي چې دې بدعت ته سنت ووایې او دثواب توقع ولري او که داسی نه شي‌نو دامام مالک رحمة الله علیه قول به ثابت شي چې وایې نعوذ بالله څوک نوی شیان پیداکوی ددی مطلب دادی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دنبوت په زمانه کی خیانت کړی دی دثواب شیان یې امت ته نه دی رسولی که چېرې موږ دسلف صالحینو لکه اصحاب کرامو او تابعینو مخالفت وکړو بیاهم داخبره مکروه کیږی.غرض داچې که چېرې داسې زیات څراغونه لګول جائز بلکه مستحب هم شي خوپه داسې خاصو شپو کښی یې خاصول او دزیات ثواب نیت لرل بدعت او ګمراهي ده او ددې پر یښودل ضروري دی لکه څنګه چې دسلف صالحینو اعمال او اقوال پر شامل دی.

په کتاب الاعتصام ذوهم توک کی علامه شاطبی رحمه الله زیات شمیر دسلفو اثار رانقل کړی وایې چې که چېرې دیوحکم مخکی مستحبوالی او سنت والی ثابت هم وو لیکن دهغه په عمل کولو سره خلګ له شریعت څخه تیریدل او نور بدعات ورسره پیداکیدل نو دداسې کار پرېښودل پکار دی ، دشوال دمیاشتی لومړنی ۶ شپې (دکوچنی اختر شپږ شپې) دکوموچې فضیلت په احادیثو کی راغلی دی دحضرت امام مالک رحمه الله حضرت امام ابو حنیفه رحمة الله په نزد ددې اهتمام او التزام مکروه دی څکه چې عوام خلګ دادرمضان المبارک جزبولي .(الاعتصام ص۱۷۰)

همدا شیان چې دبرات او دقدر په شپه په مسجد کی اجتماع او دهغه التزام دا پخپله بو مستقل بدعت دی دکوم چې مثال په خیرالقرون کی نه

دی لیدل شوی.څوک ویلی شي چې دااجتماع یو مقبول شی دی بلکه سنت او مستحب یو ازی هغه دی کوم چې له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دی چې یوازې به یې په دغو مبارکو شپو کی نوافل اوتلاوت کاوو همدا شان زیات رونبانه کول له بدعت سره سره پر نورو ډیرو مفاسدو مشتمل دی مثلا ۱- دمال بې فائدې خرچ کول او کوم چې خلک داضرورت بولی چې راجمع شی او دقرانکریم تلاوت وکړی څکه دڅراغونو ضرورت دی داقسم تلاوت پخپله یو مستقل بدعت دی او دا بیا څنګه اسلامی ضرورت وبلل شی اودبرقی رڼا هم داحکم دی چې ترضرورت یې زیات لګول اسراف دی باید له دی تولو شیانو څخه ډډه وشی

۲- دداسې زیاتو بتیو او څراغونولګول باید له دې وجې هم بند شي چې نن او سبا ډیر مسلمانان او هندوان سره یوځای وی ترڅو دمسلمانانو او هندوانو مشابهت رانشي او په مسجد کښې چې کوم دڅراغ بلولو فضیلت دی یوازې ددې لپاره چې ضرورت دی چې له دې څخه هیڅوک منکر نه دی همدا شان په سیرت ((حلبیه)) او نورو کتابو کی راغلی دی چې حضرت عمر رضی الله تعالی عنه دتراویحو لپاره زیاتې بتی او څراغونه لګول او حضرت علی رضی الله تعالی عنه ورته وویل چې خدای جل جلاله دی ستا قبر رونبانه کړي لکه څنګه چې تا زمونږ مساجد رونبانه کړو دابالکل غلطه ده چې دحضرت علی رضی الله تعالی عنه له رڼا څخه داظاهری رڼا مراد وه بلکه نور دقران یې ترینه مراد وو پر داسې غلط روایت دیوه بدعت بنیاد ښوول سراسر بناء فاسد علی الفاسد ده.دحضرت علی رضی الله تعالی عنه مراد داوو چې حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه په خپله زمانه کې دتراویحو دلمانځه یوازني اهتمام وکړ مساجد یې په تراویحو او قرانکریم منور کړل همدې طرف ته دحضرت علی رضی الله تعالی عنه

اشاره وه چې خدای جل جلاله دی دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه قبر داسې منور کړی لکه څنگه چې ده زموږ مساجد دقران په نور منور کړل
رفعت قاسمی غفرله

**تنبیه** : په دې بیان کی دهر نمبر سوال او جواب شوی دی مطلب داچې دبرات او قدر په شپه مساجد مزین او ښائسته کول یو بدعت دی او څراغونه اوبتی لگول دوهم بدعت دی او دخلکو یو ځای کول دریم بدعت دی البته که چیری اتفاقا خلگ سره یو ځای شول په مسجد کې داکوم بدعت نه دی تر هغو پورې چی ددې اجتماع دسنت بللو خطر نه وی له دې بدعاتو نه علاوه په څراغونو لگولو کی اسراف هم دی او تشبه بالهند (له غیر مسلمانانو سره) هم ده نوځکه له دومره مفاسدو سره سره په هیڅ ډول جواز نلری داممنوع کارونه حسنات بلل او بیا خصوصا په داسې مبارکو شپو کی ځکه چې په مبارکو ځایو او وختو کی چی څنگه عبادت ډیر اجر لری همدا شان بدعت او معصیت زیاته گناه لری . لکه څنگه چی محقق علامه ابن همام رحمة الله په فتح القدیر کی په حرمینو کی دزیاتی گناه تصریح کړی ده او دټولو علماؤ په نزد متفق علیه ده چې کله نیک کار له کوم بدعت سره ملگری شې نو پریښودل یې ترکولو زیات افضل دی لکه څنگه چې دشامی په حواله مخکی ذکر شو . والله سبحانه وتعالی اعلم واحکم
(امداد المفتین ۲۱۱ دوهم ټوک)

## دآتش بازی تاریخ

په غور سره فکر وکړئ چې دآتش بازی (اورنه غورزول) چې نن په هندوستان کی رواج ده دااسلامی شعار نه دی بلکه دهندوانو شعار دی ، دادهندوانو یو مشهور عادت دی له هندوانوسره په گډه ژوند کی له ډیره وخته موږ له دوی څخه ډیر شیان زده کړی دی او دوی له موږ څخه خو

افسوس دادی چې هغوی له مور څخه زموږ شیان زده کړی وای او داچې موږ ددوی څخه بد شیان زده کړی دی . آتش بازي خاص دهندوانو رواج دی چې په اسلام کی هم ځای نلری ددې قول تر ټولو لوی حجة او دلیل دادی چې ددې رسم وجود نن سبا په هیڅ اسلامی ملک کی نشته ددنیا په هره ټوټه کی چې هلته دوه یا درې مسلمانان اباد وې هو که وی هغه په بر صغیر کی یا دفارس په شاوخوا کی چې هلته یو وخت اتش پرست اباد وو .
دفضائل الایام والشهور ص ۱۱۳

دبرات په شپه کی دڅراغونو دبلولو او ساتیری لپاره راجمع کیږی او داقبیح فعل کیږی چې دا ډیر اشد بدعت دی ځکه چې ددې اصل نه په کوم معتبر او غیر معتبر کتاب کی نشته او نه په دې باره کی کوم کمزوری او ضعیف حدیث شته او په هند کی داعام عادت دی په نورو ممالکو کی ددې رواج نشته . داعادت هندوانو له ډیوالی څخه اخستی دی ځکه چې اکثره مسلمانانو دهند وانو ښځی مینځی کړی دی ځکه دارواج په مسلمانانو کی ددوی په خاطر شائع شوی دی (الجواهر الزواهر ص ۲۵۳ )
په امریکه کی یو اتش پرسته قوم تیر شوی دی بیا وروسته مسلمانان شوی دی بیا هم داتش پرستی رواج په کی پاته دی ، ځکه چې دغه قوم دڅراغانو خاص اهتمام کاوو . دخلیفه هارون الرشید عباسی او دهغه دزوی مامون رشید عباسی دخلافت په دور کی برامکه ته عروج حاصل وو ددی قوم ته په برامکه کی یحیی برمکی محمد خالد برمکی او جعفر برمکی ته عباسی خلفاء خاص عهدی ورکړی وی ځکه چې هغوی ددې رواج دعامولو ښه زمینه مساعده کړې وه او تر ډیره حده هغوی کامیاب هم شولهمداشان علماء اسلام ددې مخالفت په عامه توګه کړی دی ، داکار یې دشریعت مخالف بللی دی . دمسلمانانو په لکونو روپی هر کال په داسې حرامو او ناجائزو شیانو مصرفیږی . (حقیقت شب برات ص ۴۴۲ )

## دآتش بازۍ حکم

ددې فاسدو رواجو څخه اتش بازی هم ده چې په دې کی ګڼ شمیر خرابۍ شته.
۱- دمال ضائع کول چې حرمت یې له قران څخه ثابت دی
۲- دخپل ځان او لاد او ګاونډیانو دسوزلو خطر هم دی ځکه چې ډیرې واقعې داسې شته چې خلګو خپل لاسونه او نور اندامونه په اورسوی دی او همداشان هر ارخیز تاوانونه باید له فکره ونه وزی. دداسې نقصاناتو ممانعت په قرانکریم کی ذِکر شوی دی. ( وَلاَ تُلقُواْ بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ)
پاره سیقول سوره بقره
یعنی خپل ځانونه په قصد سره مه هلاکه وئ یه دې اړه په حدیث شریف کی راغلی دی چې بیله ضرورته له اور سره ګډوالی منع بلل شوی دی. ځکه چې بل اوراو بل شوی څراغ پرینبودل دخوب په وخت کې په حدیث شریف کې منع شوي دي.
۳- ځیني وختونه په اتش بازۍ کې کاغذونه هم مصرفیږی کوم چې دعلم اسباب دی ، دداسې شیانو بې ادبې کول په خپله قبیح (بد) کار دی ډیر بدکار خو لا دادی چې ډیر وخت په دی کی لیکل شوی کاغذان هم وی مقصد داچې هر څه پر لیکل شوی وې ځکه چې دداسې رو اجو خلګ اکثره غیر مسلمانان او جهال وی او پر دې کاغذانو قرانې ایاتونه هم لیکل شوی وی لکه څنګه چې ماته حضرت اشرف علی تهانوی صاحب دیوه معتبر شخص قصه وکړه چې ما دکاغذ ساتیری ولیدله چې دا دقرانکریم ورقه وه
۴- دکوچنیانو ابتدائی تعلیم دګناه او معصیت په اسبابو سره وې چې اصلا امر داسې دی چې علم او عمل ورزده کړي اویه دې عمل سره ګواکی دشریعت مقابله شروع ده نعوذبالله منها خصوصا په دې مبارکه شپه (دبرات پنځلسمه) هسې خرافات اوناوړه اعمال عادت شوی دی داخبره

بیاتکرارکوو لکه څنګه چې په مبارکو وختونو عبادت زیات اجر لري همدا شان ګناه په داسې اوقاتو کې زیاته ګناه لري . (اصلاح الرسوم ص ۱۹)

## له یاجوج اوماجوج سره مشابهت

داتش بازۍ ځیني الات داسې وې چې داسمان لور ته غورځیږي او داکله کله دخلګو پر سر راشیوه کیږي او سوزي له دې څخه علاوه اتش بازۍ(اورلوبې) له یاجوج او ماجوج سره مشابهت ده لکه څنګه چې هغه غشې داسمان لو ر ته غورزوي او له کفارو سره مشابهت هم دی ځینې خلګ ددې دجواز لپاره وایې چې په مکه معظمه کې دحج په شپو کې توپونه خطاکوي له دې څخه معلومیږي چې داجائز ده که نو ولې هغوی داسې کول؟ددې جواب دادی چې دادعوامو خلګو فعل دی داپه شریعت کې کوم حجة نه دی البته دعالم محقق او دینداره عالم فتوی کو م چې دقواعد شرعیه مطابق وی حجة ده بنکاره خبره ده چې توپونه چلول دلښکر فعل دی نه ده دکوم عالم فتوی ده بل داچې په دې کې کوم حکومتی مصالح هم شته داسلامی شوکت ظهوردحج دشعائر تعظیم او دارکانو اعلان داسې نور او په اتش بازۍ کې کوم شوکت دی؟ البته که چېرې په یو ځای کې دکوم ضروری امر په خاطر داعلان دپاره اور ولګیږي بقدر ضرورت روا او جائز ده لکه دروژه مات او پیشلمی دوخت لپاره کوم اور ولګیږي په دې کوم ممانعت نشته که چېرې ترضرورت زیات شو داهم ممنوع دی . (اصلاح الرسوم ص ۲۰)

## داتش بازۍ (اورلوبې) نقصانات

خلګو ددې شپې برکات پرې ایښیدی دی بې فائدې حرکات یې اختیار کړي دي . لکه څنګه چې اتش بازې دیو بد حرکت نوم دی . اوبدوالی یې هم ثابت دی داسې تجویز کیږي چې اتش بازۍ (اورلوبه) هم ده له نامه څخه

معلومیږی چې دخطرې او لهو لعب شی دی فکر وکړئ چې اور دشیطان عمل دی ایا دایو ښه کار دی ؟په حدیث مبارک کی دومره قدر راغلی دی چې دخوب په وخت کی څراغونه مړه کوی او عادتا څراغ لیری ایښودل کیږی لکن نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیاهم بل څراغ نه دی خوښ کړی ، څکه چې له خطرې خالې نه دی ، داور لګیدو امکان پکې شته او ددې په اړه زیات شمیر واقعات پیښ شوی دی څه فکر کوئ چې له خپل ځان سره به نژدی ولی نه وی منع : په رشتیا هم چې ډیر خطرې شی ده ، داتش بازی په سبب هرکال زیات شمیر واقعات مینځ ته راڅی دچالاس سوزل کیږی ،دچا ځان او دچابیا کور او داسې نور سوزل کیږی که چیرې فرض کړو چې داهیڅ هم نه کیږی دمال نقصان خو ضرور دی دډیر تعجب ځای خودادی چې ډیر سپین ږیری خلګ خواهش لری چې پخپله داکار وکړی خوبیا دغه ددوی دوقار مخالف کار دی . څکه مشران پلمه کوی او وایې چې ماشومان خبره نه منی .که چیری کوچنیان ضد کوی داضد ته هیڅ اعتبار نشته غور وکړئ که چیری ستاسو ماشومان باغیان وی او په وهلو باک نه کوی .ایا تاسو به یې نه منع کوی ؟که چیری ماشوم ضد وکړی یا داسې بل ضدناکه شی غواړی ایا تاسو به یې ورکوی؟ او چې خدای جل جلاله او دهغه رسول صلی الله علیه وسلم مضر ورته ویلی دی هغه بیا ولی عادت جوړوی؟ له دی څخه معلومه شوه چې درسول الله صلی الله علیه وسلم فرمان تاسو ته کوم اهمیت نلری (نعوذ بالله) حال داچې دامال او دولت ستاله کومه وو ، داټول دخدای جل جلاله ملکیت دی تاسو محض خزانه داران یاست چې ستاسو په لاسو کی فقط تحویل دی داسې یاست لکه څنګه چې غلام وی مالک یوازې الله جل جلاله دی ((ولله خزائن السموات والارض)) ژباړه :اوخاص دالله جل جلاله لپاره دی داسما نو او دځمکې

خزانې مو ږ به دالحاره نشته حې خنگه عوانړ و هغسې بې خرخ کړو ، دا دخدای جل جلاله مال دی به قیامت کې د دې سوال کیږي چې خنگه مو گټلی او خنگه مو مصرف کړی دی نو حکه ما شوما نو ته داتش بازی یا کوم بل عبث او ناجائز کار لپاره پیسې ورکړل شرعا حرام دی تاسو ورکونکی څوک یاست؟ هغکله دا مه ورکوی په ضد کولو سزا ورکوی او دساتیری او په ښکاره خابو کې بې مه پریږدی (السلبغ ص ۴۸ توک ۸)

## دبرات په شپه وهديرې ته دتللو ثبوت

په دې شپه کې داعمل هم مذکور دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به جنة البقیع ته تلی او هلته به یې اصحاب کرام رضی الله عنهم ته دوعاوی کولی له څخه هم ددې عمل سنت والی ثابتیږی . علماء کرامو داعمل مسنون بللی او له دی څخه علاوه نور ټول امور بدعات او مکروه دی مثلا په اجتماع سره هدیرې ته تلل څراغونه لګول چې ټوله هدیره روښانه شي او دخوراک یا بل شی ترتیب نیول بلکه هرې هدیرې ته چې ولاړ شي په انفرادی شکل او له کوم فضول مناسبتو بغیر صرف د مغفرت دعا وکړی او ثواب حاصل کړی بیرته راوګرزی او په بل عبادت مشغول شي بس همدومره اندازه دسنت مطابق ده او داعمل دسنت مطابق ده . مناسبه نه ده چې عبث اعمال رواج کړي . (حقیقت شب برات ص ۵۲)

## ایاښځې دمړو زیارت کولای شي ؟

دقبر په زيارت کې څه منع نشته ،که څه هم ښځې زيارت وکړي ،هغه ددې حديث په بنياد چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ويلي دي: چې ماتاسې دقبرو له زيارت څخه منع کړي واست لکن اوس واورئ دقبرونو زيارت کوئ شارح رحمة الله عليه ويلي دي: زيارت نه دښځوپه تللو کې کوم ممانعت نشته . يعني خلاف اولی ده . تفصيل دادی چې که ښځې ددې لپاره زيارت ته ځي چې هلته خپل غم نوی کړي او وژاړي . په دې صورت کې زيارت بالکل جائز نه دې . او په کوم حديث کې چې دښځو په زيارت کولو باندی لعنت ويل شوي دي . له دې څخه دامخکنی ښځې مراد دي .او که چيرې هديرې ته ددې لپاره ځي چې عبرت حاصل کړي . او دصالحانو قبرونو ته دتبرک لپاره ځي، او ښځې سپين سرې وي نوکوم ممانعت نشته ، او که چيرې ښځې ځوانې وي نو زيارت ته تلل مکروه دی . اوياله خلګو سره ځي نوزيارت کول مستحب دي . محتار ۸۷۹مخ اول ټوک

**مسئله** : يوازې ښځه چې ځوانه وي يوازې دنبی کريم صلی الله عليه وسلم له روضې مطهرې سوابلې هيڅ يوې هديرې ته تلل نې روانه دي.

مظاهرحق جديد ۴۷۲ مخ دوهم ټوک

وهديرې ته دښځو تللو دممانعت وجه داده چې هغوی هلته ولاړې شي هلته نامناست الفاظ وائي . دزيارت چې کومې ښيګڼې دي هغه تر بد يو لږ دي . له دې څخه پرته په لار کې دزينت او ښکلا ظهور کوي . اونورو ته ځان ښکاره کوي ،او دادواړه لوی ګناهونه دي . زيارت سنت دي ، دسنت داداکولو لپاره ددومره ګناه ارتکاب څنګه کيږي ؟ که چيرې ښځې زړې جامې واغوندې يعني بغير له ښکلا جی خوک ورته توجه نه کوی ،اوهديرې ته ولاړې شي اويوازې دمغفرت دوعاوې وکړی او کوم غير شرعي خبرې ونکړي . بيانو کوم ممانعت نشته حسن العلوم ۷۹۱مخ ۳ ټوک

**مسئله** ځینې فقهاؤ ښځو ته دزیارت کولو اجازه ورکړې ده چې ژاړې په دې شرط چې کښیني به نه. (فتاوی دارالعلوم ۴۳۲مخ ۵ټوک

## ایا دمړي روح کورته راځي ؟

**سوال** : دمړي روح یوځای ته راځي کنه که چیرې نه راځي نو بیا په خوب کې ولې راځي ؟

**جواب** په خوب کی دکوم مړي لیدل ددې تقاضانه کوي چې دهغه روح دې مکان ته راځي . په خوب کې لیدل دروحانیت په سبب سره ده . له مکان سره دهغه هیڅ تعلق نشته . ډیر ژوندي خلک چې ډیر لیرې وي هم په خوب کې لیدل کیږی . دخوب قصه جلاده داجسامو دراتګ ظاهري اتصال ددې لپاره ضروري نده ، عالم ارواح بل عالم دی (فتاوی دارالعلوم ۴۲۰مخ /۵ټوک

**مسئله** روح مکان ته نه راځي ددې هیڅ ثبوت نشته . داسې خیال او عقیده لرل نه دی پکار .

**مسئله** : ددې خبرې هم هیڅ ثبوت نشته چې دپنجشنبې په ورځ روح دخپلو اقربؤ کره راځي .او دثواب په امیدوي . دجمعې لمونځ کوي او بیابیرته ځي داهیڅ حقیقت نه لري داسې کول نه دی پکار . (فتاوی دارالعلوم /۴۲۹مخ /۵ټوک

**مسئله** دبزرګانو دارواحونو پر راتللو کوم قوي دلیل نشته ، کوم روایات چې منقول دي دا دمحدیثنو په نزد صحیح نه دي . (فتاوی محمودیه ۸۲مخ /۱ټوک

**مسئله** دمؤمنانو دجمعې په شپه راتلل هیڅ ثابت نه دي . دابیوازې واهیه (غلط ) روایات دی پردی عقیده لرل نه دی په کار . (فتاوی رشیدیه /۲۲۹مخ /۲ټوک

## وهدیرې ته دتلو اداب او احکام

نبی کریم صلی الله علیه وسلم داسلام په ابتداء کی وهدیرې ته تلل منع کړی وو ځکه چې دجاهلیت زمانه نژدی وه ځکه فکر یې کاوو چې شاید

خلک پر قبرو رسوخ پیدا کړي ، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم دزیارت قبور اجازه وکړه . څکه نو دټولو علماؤ په نزد قبرو زیارت کول مستحب دی څکه چې قبروته په تګ سره په زړه کی نرمی راځی . مرګ یې یادیږی او په زړه کی داعقیده ټینګیږی چې له دې فاني دنیا څخه علاوه بوه بله دنیا هم شته چې هلته تګ ضروری دی او هلته ددې دنیا دیوه بوه عمل حساب کیږی له دی څخه علاوه نوري دېري فایدی لری تر ټولو ښه فائده داده چې هلته دمړو دپاره دمغفرت ددعاوو ښه زمینه مساعده وی کوم چې سنت دي لکه څنګه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به جنت البقیع ته تلی او هلته به یې ومړوته سلام کاوو او ورته به یې دمغفرت دوعاوې کولی وقبروته دتللو څه اداب او احکام شته کوم چې شریعت بیان کړی دی :

۱ کله چې یو شخص دمغفرت ددعا لپاره قبروته ولاړ شی هلته دی دمړي مخ ته مخامخ ودریږی مخ دي دقبر او شادي دقبلې لورته کړی

۲ کله چې قبر ته ورسیږی دقبر مړي ته دې سلام وکړی (السلام علیکم یااهل القبور الخ )

۳ – پر قبر دې دعزت لپاره لاس نه ایږدی

۴ - قبر دې نه موچوی

۵ - قبر ته دې دتعظیم لپاره نه ټیټیږی او نه دی ورته سجده کوی

۶ - دقبرخاوري دې پرمخ نه موښی . له دې احکامو او ادابو څخه علاوه داسې شیان اختیارول کوم چې په شریعت کښی نشته . دادیره ګمراهی وحماقت دي .له قبر سره نژدې دقران کریم تلاوت مکروه نه ده . دنورو ورځو په نسبت خصوصا دجمعی په ورځ دورځې په لمړی برخه کښی هدیرې ته تلل افضل دي داهم منقول دي چې دنورو ورځو په نسبت دجمعی

په ورځ مړي ته زيات ادراک کيږي . او دجمعې په ورځ قبر ته راتلونکي قريبان نه پيژني . (مظاهر حق جديد ص ۴۷۶ ج ۲)
دحضرت عقبه بن عامر رضی الله تعالی عنه څخه ارشاد نقل شوی دي وايې چي ما ته داخوښه ده چي زه په اور کښې وخيژم يا په تيره توره پښه کښيږدم آن داچې پښه مې پرې شي . تر دې چې زه دچا په قبر وخيژم . اوزما په نزد په قبرو کښې متيازې (بولې) کول اوپه بازارو کې دخلکو په مخ کښې متيازې کول هم فرق نلري . (مظاهر حق جديد ص ۴۸۲ ج ۲)

## وهديرې ( مړستون ) ته دتللو مسنونه طريقه

**ژباړه** : له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه څخه روايت ده چې يو ځلې نبي کريم صلی الله عليه وسلم دمدينې په هديره تيريدی . اوهغه دقبر لور ته خپل مخ مبارک واړاوو اوويې ويل : ( السلام عليكم يا اهل القبور يغفر الله لنا ولكم وانتم سلفنا ونحن بالاثر ) ای دقبر خاوندانو پرتاسې دې سلام وي خدای تعالی دې موږ اوتاسو ته مغفرت وکړی اوتاسو ترموږ مخکې ياست اوموږ درپسې يو .

**تشريح** دحديث شريف الفاظ دي ( چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به دقبر ولور ته خپل مخ مبارک اړوئ اوتوجه به يې ورته کوله داپر دې خبره دليل ده چې که څوک دقبر مړو ته سلام کوی دده لپاره مستحب ده چې دهغه مخ دمړی و مخته مخامخ کړي همداشان کله چې دمغفرت ددعاء لپاره قبر ته دريږي بايد خپل مخ دمړی و مخته برابر کړي لکه څنګه چې دعلماؤ اومجتهدينو مسلک دي اوددې مطابق دټولو مسلمانانو عمل دي .ميرزا مظهر رحمه الله وايي دچا زيارت دهغه دملاقات په شان ده همداشان لکه څنګه چې دچا په ژوند کښې دملاقات په وخت کښې خپل مخ دهغه و مخ ته مخامخ کوی دزيارت په وخت کښې هم بايد مخ دهغه مخ

ته برابر کړی داهم په کار ده چې دکوم مړی په وړاندی هغه طریقه کول پکار ده کوم چې یې دهغه په ژوند کښی ورسره څنګه ګذاره کوله دمثال په ډول دملاقات په وخت کښی دي دیو مکرم اوعزت مند چاخواته نژدي نه شوای کښینستلای همداشان اوس ئي هم باید زیارت یعنی قبر ته نژدی نه کښینی لکه څنګه په ژوند کښی کومه اندازه ورسره کښینستلای شوای نو اوس هم باید هغونده ورسره کښینی اواوس هم باید په هغه طریقه ورسره دغونه اندازه ورسره کښینه یا ودریږه .اوکه چیری دهغه په ژوند کښی ورنژدی کیدی اوس دي زیارت ته هم نژدي ورځی او کښینی دي کله چې دچا زیارت کیږی باید سورة( فاتحه اوقل هو الله ) دري واره وویل شي اوثواب دي مړي ته ورو بخښل شي اوهم دي ورته دمغفرت دعاء ورته وکړی.

(مظاهر حق جدید مشکوة شریف صفحه ۴۸۰ ج ۲)

## آیا مړی زیارت کونکی پیژنی ؟

پردې خبره دټولو اسلافو اتفاق دي چې مړی زیارت کونکی پیژني او ورته خوشحالیږی ( دحضرت عائشة رضی الله عنها څخه روایت دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل چې کوم شخص دخپل ورور قبر ته لاړشی . اودقبر خواته یې کښینی ، نودقبر خاوند ورڅخه خوشحالیږی اودسلام جواب یې ورکوی ترڅو چې هغه هلته ناست وي (کتاب الروح ص ۳۲ بحواله ابن ابی شیبه در کتاب القبور)

په دې باره کښی ډیر احادیث راغلی دي . اوپه دې کښی هیڅ شبه نه ده پاته چې په قبر کښی څنګه څوک وینې ؟ځکه چې دادلوی خدای تعالی کار دي چې په دې زمانه کښی داسې الات موجود دي چې پر ځمکه یې کښیږدي ترځمکه ډیر لاندي معدنیات معلوموی . لکه تیل . پټرول ، زر اوداسې نور اوله دي سره سره ( ایکسری ماشین ) چې بالکل عام شی دي ( ان الله علی کل شئ قدیر ) مولانا محمد رفعت قاسمی مدرس دارالعلوم دیوبند )

## دثواب درسېدو څو ضروري مسئلې

حضرت امام احمد حنبل ( رحمة الله علیه ) وايي چې کله تاسو هديرې ته لاړشی ، سورة فاتحه معوذتين ( قل اعوذبر ب الفلق ، قل اعوذ برب الناس ) اوقل هوالله احد ووایاست اوثواب يې مړی ته وروبخښئ . له حضرت علی رضی الله تعالی عنه څخه روايت دي: کوم شخص چې هديرې ته لاړشی هلته دقل هوالله سورة (۱۱) واره ووايي اوثواب يې ټولو مړو ته وربخښئ . ده ته به دهديرې دمړو په اندازه ثواب ورکول کيږي له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه روايت دي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم وويل: چې کوم شخص هديرې ته لاړشی اودثواب په نيت سورة يس تلاوت کړی الله تعالی دمړو عذاب ورکموی او ودې شخص ته دهديرې دمړو په اندازه نيکۍ ورکول کيږي. (مظاهر حق شرح مشکوة شریف ص ۴۴۹ ج ۲)

که چېرې دچا دامخکښې سورتونه نه وي ياد ، هر سورة چې يې ياد وي ويلای يې شی اوخدای تعالی ثواب ورکوی . که چېرې بالکل جاهل وي په ژبه دي ورته دمغفرت دوعاوی وکړی . يا دي صدقه اوخيرات وکړی اوثواب دي وروبخښی څکه چې په حديث شريف کښې راغلی چې مړی په مثال دهغه چا ده چې اوبو اخيستی وي اوفرياد کوی . دخپلو قريبانو : پلار ، ورور اوداسې نورو دوعاؤ ته منتظر وي چې دوئ يې ورته وکړی څوکله چې هغوی دوعاوي ورته وکړی تردنيا اومافيها ورته محبوب شی ، او دژوندو تحفې دمړو لپاره دمغفرت دوعاوي دي . (احياء العلوم ص ۹۴ ) ۴ نوک محمد رفعت قاسمی غفرله ،مدرس دار العلوم ديوبند )

**مسئله** :په شپه کښې دمړو زيارت کول يعنی دقران کريم کوم سورة ويل اوثواب يې ورته بخښل جائز دي . (فتاوی دار العلوم ص ۴۵۳ ج ۵ بحواله مشکوة شريف ص ۱۵۴ ج ۱)

**مسئله** مړی ته ویل کیږی چې داثواب دفلانکی له لوری حخه ده . که له هدیرې څخه علاوه په کوم بل ځای کښې وي فرښته يې ورته رسوي.
(فتاوی دارالعلوم ص ۴۲۲ ج ۵)

**مسئله** ومړوته دصدقات خیرات قران کریم اودمغفرت ددوعاؤ فائده رسیدل له قرآنه کریم اوله حدیثو څخه ثابته ده . لدی حخه انکار ناپوهی ، گناه اوداجماع څخه خلاف ده البته دثواب لپاره کومې معلومې ورځې شرط نه دي لهذا ځلویښتمه . کلنی . عرس اوف نحه خوانی داټول رواجې رسومات دشریعت مخالف دي ، اوله مړو څخه کومک غوښتل داسې ناجائز دي له الله تعالی څخه بغیر دهیڅاهیڅ تصرف نشته (فتاوی دارالعلوم ص ۴۳۷ ج ۵)

**مسئله** سنت داده چې د زیارت کولو په وخت کښې پرسنت طریقه مړو ته سلام وکړی . اودټولې هدیرې لپاره دمغفرت دعاوی وکړی . اوکه چېرې څه ووایې اودمړو وارواح ته یې ثواب وروبخښی ډیره ښه ده . اوکه چېرې دخپل ځان لپاره دوعاوې نو له الله تعالی څخه سوال وکړه په دې ډول چې یا الله تعالی ددې نیکانو په برکت زماحاجت پوره کړی وبزرگانوته به دانه وایې چې تاسو زما لپاره دوعاوکړی . دقران کریم ایات پردې دلالت کوی ، لهذا داسې دي نه وایې چې خطاب مړونه وي . بلکه له الله تعالی څخه دي دهغوی لپاره هم دمغفرت دوعا وکړی . که چېری ددوئ په وسیله سره دخپل ځان لپاره دوعاوکړی نوداکوم ممانعت نلری . په حصن حصین کښې ذکر شوي دي چې دصالحینو په وسیله سره دوعاکول مستحب ده چې الله تعالی دهغوی په برکت سره دوعاقبوله کړی (فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۲ ج ۵ به حواله حصن حصین ص ۸۰)

**مسئله** :دثواب بخښلو په وخت کښې که څه هم یوازې نیت کافی ده ، لکن که په ژبه سره ووایې چې یا الله تعالی ددې عمل ثواب فلانکی ته ورسوي
(فتاوی دارالعلوم ص ۴۵۱ ج ۵ به حواله درالمختار ص ۸۴۴ ج ۱)

**مسئله**: دثواب بخښلو په وخت کښې مناسب داده چې وویل شی فلان ابن فلان (فلانکی دفلانکی زوی) که چېرې دیلار نوم ورته معلوم نه وي یوازې دده نوم کافی ده لکن هرڅه چې په نیت کښې وي هغه کافی ده هرڅه الله تعالی ته معلوم دي) (فتاوی دارالعلوم ص ۴۲۱ ج ۵)

**مسئله** که چېرې په یوه وخت کښې ډېرو مړو ته ثواب وبخښی داهم صحیح ده لکن که چېرې داثواب اول یوه ته وبخښل شی بیا نورو ته نه بخښل کیږی ځکه چې داثواب اول ته ورسیدی. (فتاوی دارالعلوم ص ۴۱۹ لوک نحو نه دالمحتار ص ۸۴۴ ج ۱)

**مسئله** که چېرې دقران ثواب ډیرو مړو ته څوک وبخښی آیا پوره پوره ثواب وررسیږی. که تقسیمږي؟ په دې کښې دفقهاؤ دوه قوله دي (۱) داچې هریوه ته پوره پوره ثواب رسیږی. بل داچې تقسیمږی بیا ورته رسیږی. دادوهم قول له قیاس سره برابر ده. خو دالله تعالی له فضل څخه لیری نه ده چې هریوه ته پوره پوره ثواب ورکړی. (فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۹ ج ۵)

دخدای تعالی له ذات څخه داامید دي چې بشپړ ثواب به ورکړی ځکه چې دالله تعالي له خزانو څخه هیڅ نه کمیږی. داصرف (یوازې) دبنده په نیت پورې اړه لری ځنګه چې یې پر الله تعالی ګمان وي هغسې ورسره کوي (محمد رفعت قاسمی عفاالله عنه)

**مسئله**: دقران کریم ثواب خو مړی ته رسیږی بل داچې ویونکی یونیک کار وکړی په لس ګونو بلکه تر دې هم زیات ثواب ورکول کیږی. مګر په هرکار کښی اخلاص شرط دي بیله اخلاص هیڅ عمل مقبول نده

(أَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ) (پاره ۲۳ سورة الزمر) (مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ اَمْثَالِهَا (پاره ۸ سورة الانعام) فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۱ ج ۵).

**مسئله** قران کریم په هدیره کښې په لوړ اوسوکه اواز. په یاد (حفظ) یا په کتلو سره صحیح ده) فتاوی رشیدیه کامل ص ۳۲۶).

**مسئله**: دثواب بخښلو په وخت کښې مناسب داده چې وويل شي فلان ابن فلان (فلانکي دفلانکي زوی ) که چېرې ديلار نوم ورته معلوم نه وي يوازې دده نوم کافی ده لکن هرڅه چې په نيت کښې وي هغه کافی ده هرڅه الله تعالی ته معلوم دي )(فتاوی دارالعلوم ص ۴۲۱ ج ۵)

**مسئله** که چېرې په يوه وخت کښې ډيرو مړو ته ثواب وبخښي داهم صحيح ده لکن که چېرې دا ثواب اول يوه ته وبخښل شي بيا نورو ته نه بخښل کيږی ځکه چې دا ثواب اول ته ورسيدی. (فتاوی دارالعلوم ص ۴۱۹ ج ۵ دالمحتار ص ۸۴۴ ج ۱)

**مسئله** که چېرې دقران ثواب ډيرو مړو ته څوک وبخښي آيا پوره پوره ثواب وررسيږی ،که تقسيمږي ؟ په دې کښې دفقهاؤ دوه قوله دي (۱) داچې هريوه ته پوره پوره ثواب رسيږی . بل داچې تقسيمږی بيا ورته رسيږی ، دادوهم قول له قياس سره برابر ده . خودالله تعالی له فضل څخه ليری نه ده چې هريوه ته پوره پوره ثواب ورکړی. (فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۹ ج ۵)

دخدای تعالی له ذات څخه داامید دي چې بشپړ ثواب به ورکړی ځکه چې دالله تعالي له خزانو څخه هيڅ نه کميږی . داصرف (يوازې ) دبنده په نيت پورې اړه لری څنګه چې يې پر الله تعالی ګمان وي هغسې ورسره کوي (محمد رفعت قاسمی عفاالله عنه )

**مسئله**: دقران کريم ثواب خو مړی ته رسيږی بل داچې ويونکی يونيک کار وکړی په لس ګونو بلکه تر دې هم زيات ثواب ورکول کيږی . مګر په هرکار کښې اخلاص شرط دي بيله اخلاص هيڅ عمل مقبول نده

( أَلاَ لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ) (پاره ۲۳ سورة الزمر ) ( مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا (پاره ۸ سورة الانعام ) فتاوی دارالعلوم ص ۴۴۱ ج ۵ ).

**مسئله** قران کريم په هديره کښې په لوړ او سوکه اواز . په ياد (حفظ )يا په کتلو سره صحيح ده ) فتاوی رشيديه کامل ص ۳۲۲ ).

**مسئله**: په ثواب بخښلو کښې دلاس پورته کولو ضرورت نشته ، اوکه چېرې دوعا کوی لاس یې پورته کړی وي نو شادي قبروته وګرزوی.
(فتاوی رشید یه کامل ص ۲۴۷)

ځکه چې عوام خطا کیږی چې له مړو دوعا، غواړی ، دمړی په وسیله سره دوعا غوښتل جائز ده . لکن په حقیقت کښې بیاهم له خدای تعالی څخه غوښتل دي. (محمد رفعت قاسمی)

## دبرات دشپې رواجونه

لدې رواجو څخه دبرات دشپې حلوی وي ، اوداختر غړی . اودعاشوری (لسمه دمحرم ) شربت اوداسې نور دي دبرات دشپې په باره کښې په حدیث کښې دومره راغلی دی : چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم جنت البقیع (هدیره ) ته تللی وو اودمړو لپاره یې دمغفرت دوعا کړیده له ده څخه وروسته خلګو اکثره مفاسد پکښې رواج کړي .بعض خلګ وایې چې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم غاښ مبارک چې کله شهید شو نوده حلوی یې خوړله دابالکل بی بنیاده او غلطه خبره ده ددې عقیده لرل هیڅ وخت نه ده جائز . ځکه چې عقلا هم نه ده مکمل . ځکه چې داواقعه په شوال کښې پیښه وه نه په شعبان کښې .دوهم : بعض خلګ دحلوی دجائز بللو لپاره داوایې چې په دې شپو کښې حضرت حمزه رضی الله تعالی عنه شهید شوی دي دادهغه رضی الله تعالی عنه فاتحه ده ، داهم بې دلیله اوبې اصله ده ، لمړنی خودتاریخ تعین ته ضرورت نشته بل داچې داقصه پخپله غلطه ده ځکه چې حمزه رضی الله تعالی عنه هم په شوال کښې شهید شوي وو نه په شعبان کښې دریم : بعض خلګ داعقیده لری چې دبرات په شپه دمړو ارواح کورو ته راځي اوګوری چې ایا زمونږ لپاره چاڅه پخ کړی کنه ؟

ښکاره خبره ده چې دابې له کوم نقلي دليل څخه ثابتېږي . حال داچې هيڅ نقلي دليل نشته . هره مسئله له قران کريم او حديث څخه ثابتول ضروري ده . اوپه قران اوحديث کښې په دې باندې هيڅ دليل نشته . چې دمړو ارواح دمرګه وروسته دې دنيا ته راځي اوګوري البته پرنه راتلو ډير دلائل موجود دي (مشکوة شريف ص ۲۵ ج۱ ) محمد رفعت قاسمي غفرله ) .

څلورم : دبعضو خلګو فکر دې چې کله دبرات ترشپه مخکې څوک مړشي . ترڅو چې دده لپاره دبرات په شپه فاتحه ونه شي . داله مړو څخه نه دي حساب . داهم محض بې اصله اولغوه ده . بلکه داهم رواج دې چې څوک تردې جشن ( دبرات ترشپې ) مخکې مړشي . دمړي وارثانو دامخکې نه دي لمانځلی ( دپيداکيدو په وخت کښې ) ليکن په احاديثو کې په صراحت سره مذکور دی چې مړی قبر ته ځي په داسې شان څنګه چې دی دنيا ته راغلی ؤ داسې نه ده چې دبرات په شپې پورې موقوفه دهپنځم : بعض خلګ دبرات دشپې دحلوې داسې پابندی کوی چې بې حلوی بی برکت نه شي داهم ډيره فاسده عقيده ده چې ضرور بې بولی عمل بې هم فاسديږي تر فرضو او واجبو بې زيات اهتمام کوی له دې خرابيو سره سره داتجربه هم ده چې نيت بې بالکل خراب وی ثواب بې مقصود نه وی . او داخيال بې وي چې که چېرې حلوی پخه نکړي نو خلګ وابې دا مسکين شوی دی . ددې تهمت دليری کولو دپاره چې څومره تکليف وی ضرور يې کوی . دداسې نيت صرف (يوازې) فخر او اسراف دی چې ګناه يې بار بار ذکر شوی ده کله کله داسې هم کيږي چې ددې لپاره په سود او قرض پيسې واخلی . چې داځان نه لويه ګناه ده.شپږم : کوم څوک چې دکومک مستحق وی هغه ته هيڅ نه ورکوی . اقلاً چې په کور کې څه پاخه وی داهم نه ورکوی اکثره مالدار خلګ چاته په معاوضه شی ورکوی او نت بې داوی چې

فلانکي مدته سې راکړې دی که بې زه ورنکړم نو هغه به خه وايي ، پدې کې هم هغه ريا کارې او تفاخر ده لووم. بعض خلک دشعبان په پنځلسمه منشور دال ضرروربخوی . ددي دايجاد تاريخ معلوم نه دی خو دومره ويلای شو چې داکار بنکاره ګناه ده اتم. څينی خلک داسې هم شته چې په دې شپه (دبرات شپه) دنفلو لمونځو لپاره خلک راجمع کوی تر څو دشپې روښول ورته اسان شي داهم له شريعته مخالف کار دی . البته که چېرې اتفاقاً خلک جمع شول پدې کې بيا کوم ممانعت نشته. نهم: څينی خلک په دې شپه لوښي نوي کوي کورونه چونه کوی او څراغونه ډېر لګوي او داسې نور دبدعت کارونه کوي .دا بالکل دکفارو نقل دی او په حديث شريف کې تشبه حرام بلل شوی ده. (اصلاح الرسوم ص ۱۳۴ از حضرت تهانوی)

په هندوستان کې غير مسلم خپل جشونه له ډاليو څخه رااخستی دی چې لوښی بدلوی او څراغونه هم روښانه کوی . دهغو داعقيده ده چې په دې کار سره دهغوی مذهبي مشران خوشحاله کيږی. خو اکثرو مسلمانانو دارسم خپل کړی دی دا بالکل حرام دی پکار ده چې ځان ترينه ليرې وساتي. (الالهم احفظنا محمد رفعت قاسمی عفرله)

**مسئله**: داهم مشهور ده چې دبرات دشپې په حلوی چې لمړنی روژه مات وشی داډير ثواب لری داخبره غلطه او بې بنياده ده. (اغلاط العوام مکمل ص ۱۳۴)

## دبرات په شپه کې حلوی پخول او خوړل

**سوال**: دبرات په شپه حلوی پخول او خوړل څنګه دی ؟ که چېرې بې دثواب له نيته پخه شی داخه حکم لري. همدا شان دداسې حلوی خوړل څنګه دی ؟

**جواب**: دبرات په شپه دخوشحالی او حلوی پخولو هيڅ ثبوت نشته ،لهذا داامور ناجائز او بدعت دی . که چېرې بغير دثواب له نيته حلوی پخه شي نو بيا دبدعت تاکيد نکښی دی .بايد لدې څخه هم ځان وساتل شي همدا

شان له دانسې حلوی قبلولو څخه هم باید ځان وساتل شي لیکن داحرام نه ده (حسن الفتاوی ص ۳۸۵ ج ۱)

**مسئله** د ډوډی د تقسیمولو په متعلق په دې شپه کی زما ترنظر کوم روایت نه دی تیر شوی . البته د دې شپې فضیلت له لمر لویدو بیا تر صبح صادق ده (سپیده داغ) پورې ده. (فتاوی محمودیه ص ۷۵ ټوک ۱۰)

## دبرات دشپې سنت اعمال

دبرات دشپې خصوصیات خو معلوم شول .موږ ته څه کول پکار دی او دخدای جل جلاله دبیشماره نعمتونو دلتولو لپاره څه وکړو؟

داحادیثو له کتلو څخه ثابتیږی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دې شپه درې اعمال کړی دی ، ددې دریو سنتو طریقه اداکول دخیر او برکت ثو اب باعث دی :اول : دشعبان په پنځلسمه شپه بیله کومې تولی هدیرې ته لاړشی . او هلته په رښیدو سره دمغفرت دوعاوې وکړي که چیری صدقه او خیرات کوی ثو اب ور بخښې باید دعامو رواجو تابع نه شې اوترشریعت تجاوز ونه کړی دوهم : په دې شپه کی ویښ و اوسې دخدای جل جلاله عبادت او نفل لمونځ بیله جماعت څخه وکړي هر څومره چې مو په طاقت کی وی دقرانکریم تلاوت وکړه یابې واورې پر نبی کریم صلی الله علیه وسلم زیات شمیر درود شریف ووایاست .دخپل ځان او ټولو مسلمانانو لپاره دوعا وکړئ او له خپلو ګناهونو څخه توبه و کاږئ خصوصا له هغو ګناهونو څخه کوم چې دکولو دسبب سره په دې مبارکه شپه هم دوعا نه قبلیږی کوم څوک چې طویل (اوږد ) لمونځ کول غواړی هغه دی صلوة تسبیح وکړی دخدای جل جلاله له ویرې دې وژاړی دخپل ځان اولاد مور و پلار او دټولو مهمو امورو متعلق دې دوعاوې وکړی

دریم: په ورځ دی نفل روژه ونیسې لکه څنګه چې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم وینا ده (قوموا لیلها وصوموا نهارها) یعنی په پنځلسمه دشعبان دشپې ویښ واوسئ او دورځې یې روژه ونیسئ، دا درې اعمال له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه منقول دی باید درې سره په مسنونه طریقه سره ادا شی. (شب برات ص ۲۲)

**تنبیه** په بعضو ځایو کی دبرات دشپې رونولو لپاره خلګ راټولوې، شپه رونول په اجتماع سره که څه هم اسانه ده لیکن دنفل عبادت لپاره دخلګو داسې راټو ځای کول صحیح نه دی همدا شان په مساجدو کی رایو ځای کیدل لکه څنګه چې نن او سبا رواج ده. اکثرو علماؤ دامکروه بللی ده. په در مختار کی راغلی دی چې دکوچنی اختر لوی اختر دبرات پنځلسمه درمضان المبارک لس اخیرې شپې او دذی الحجې لس لمړنی شپې په دی ټولو شپو کی پورته کیدل او جلا جلا عبادت کول مستحب دی. (درمختار ...)

په حدیث شریف کی یوازې درې اعمال ثابت دی دهغوی ادا کول په سنت طریقه سره موجب دثواب دی: لمړی: دبرات په پنځلسمه هدیرې ته تلل مړوته دوعا او استغفار کول. که چیرې کومه صدقه یاخیرات کړی وې ثواب دی مړو ته وربخښل. له دې دعاو څخه فائده رسول دی باید صدقه په ښه توګه سره وشي نرخو ریا پکښی رانه شی. دوهم: داشپه رونول او عبادت یو ازې کول نه په اجتماعی ډول سره. دریم: په ورځ یې روژه نیول. ددې اعمالو په سنت طریقه سره اداکول نهایت مفید دی. (اصلاح الرسوم ص ۱۳۴)

## دبرات دشپې خاصې دعاوې

اعوذ بعفوك من عقابك واعوذ برضائك من سخطك واعوذبك منك اليك لا احصى ثنا عليك انت كما اثنيت على نفسك (الترغيب والترهيب ص ۳۵۸ ټوک ۲)

اللهم انك عفو تحب العفوفاعف عني (ابن ماجه، مظاهر حق ص ۲۸۵ ټوک ۲)

نبی کریم صلی الله علیه وسلم بی بي عائشې ...... ته وویل : دا دعا پخپله هم زده کړه او نورو ته یې هم ور زده کړه . ځکه چې حضرت جبرائیل علیه السلام داوعا ماته رازده کړی ده . علماؤ کرامو لیکلي دي چې دعا ددنیا دټول خیر او برکت جامع کونکی ده . ځکه چې دالله جل جلاله له لوری وبنده ته عفو او بخښنه په دعا یوری تړلې لکه څنګه چې په یوه روایت کی راغلی دی چې: دبنده له لوری دحق تعالی په دربار کی دبخښنی او عفیت تر سوال هیڅ شی افضل نشته تر څو چې ممکنه وی دادعاوې یادی کړئ او خپلو ماشومانو ته یې هم ور زده کړئ . ځکه چې نن سبا اکثره ماشومان ددرواغو نکلونه یادوی او مور او پلار یې فخر هم ورباندې کوی که چېرې مو دانه یادیږی بیا په خپله ژبه دخیر او عافیت دوعاوی وکړئ . که مو دادعا یادوې مخکې درود ووایاست بیا دوعا وکړئ لکه : ای لویه خدایه ! ته پر ټولو احسان کونکې یې پر تا څوک احسان نشي کولای . ای دلویې او مغفرت خاونده ! له تاڅخه سوا هیڅ معبو د نشته نه ده بیوزلو مددګار یې او دپریشانیانو مشکل کشا یې ای الله جل جلاله ! له تا څخه بغیر بل هیڅا څخه څه نه غواړو یوازې ته ور کونکې یې ای لویه خدایه جل جلاله ! که تاچېرې زه په خپل کتاب کې بې برخې او بی نصیبه لیکلی یم لویه خدایه جل جلاله په خپل فضل او کرم سره زما خواری ، بدبختی او کم رزقی رنګې کړي . داخبره ستا په کتاب کې کوم چې دې پر اخیري نبی صلی الله علیه وسلم نازل کړي دي نو شته دي چې الله جل جلاله چې څه غواړي لیکې یې او چې څه وغواړي محوه کوي یې ان الله علی کل شيء قدیر یاالله جل جلاله له تاڅخه کوم دپوښتنې خاوند نشته هر څه ستا په اختیار کې دي .یا الله له تاسره ام الکتاب دد ، یاالله جل جلاله ستا په روی سره زما

مشکلات او پریشانی لیرې کړي که زه په خبر یم او کنه او په هرڅه ته عالم
یې لویه خدایه جل جلاله ترټولو ته داحسان خاوند یې . لویه خدایه ! نیک
اولاد راکړې ماته بخښنه وکړې . یاالله جل جلاله ټول ګناهونه صغیره وي
که کبیره ښکاره وي که پټ ته رانه بخښنه وکړې . یا الله جل جلاله زما
عیبونه پټ کړی معافي راته وکړې پر ایمان خاتمه راکړې . زما مور
اوپلار . استاذانو او ټولو مسلمانانو ته مغفرت وکړي ای لویه خدایه جل
جلاله ! مونږ هر څه نه شو غوښتلای بس هغه غواړو چې زمونږ نبي کریم
صلی الله علیه وسلم غوښتي دي او له کوم شي څخه چې په هغه سره نبي
صلی الله علیه وسلم پناه غوښتي ده زه هم ترې پناه غواړم زمونږ دعاوي
دنبي صلی الله علیه وسلم په وسیله قبولې کړې آمین یارب العلمین

مولانا محمد رفعت قاسمي عفا الله عنه مدرس دار العلوم دیوبند

## دقدر دشپې لوېې

بسم الله الرحمن الرحیم

**إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ** بیشکه مونږ قرانکریم په لیلة القدر کې نازل کړ.
یعنی قرانکریم له لوح محفوظ څخه دلیلة القدر په شپه نازل شوی دي
.دایوه خبره ددې شپې دفضیلت لپاره کافي ده چې داعظیم کتاب په کې
نازل شوی دي . په کومه شپه چې داقران نازل شوی له دې سره سره نور ډیر
فضلتونه هم لري د نور تشویق لپاره داایت لولو: **وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ**
ضرور به در ته معلومات وي چې داشپه څومره مبارکه اوبافضیلته شپه ده
څومره فضائل او نیکی پکښې دي دیو څو فضائلو ذکر کوو: (**لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ
مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ**) دقدر شپه تر زرو شپو اولی او بهتره ده یعنی د زرو میاشتو
دعبادت چې کوم ثواب دی یوازې په دې مبارکه شپه کې عبادت تر دې

زيات ثواب لري او د دې زيادت علم هم نشته چې څومره زيادت (تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ) په دې شپه کې ملائکې راشوه کيږي:
علامه رازي رحمه الله ليکي چې کله په ابتداء کې خداى جل جلاله انسان پيداکاوو ملائکو ورسره مخالفت ښکاره کړ، د لوى خداى جل جلاله په دربارکې يې عرض وړاندى چې ته جل جلاله داسې څوک پيداکوې چې بيا به په ځمکه کې فساد کوى او وينې به بهوي، نن شپه چې د خداى جل جلاله په قدرت انسان دالله جل جلاله په عبادت او معرفت مشغول وويني ملائکه د معذرت لپاره راکوزيږى. (وَالرُّوحُ فِيهَا) په دې شپه کې روح القدس (جبرائيل عليه السلام) هم راکوزيږى، له نبى کريم صلى الله عليه وسلم څخه روايت دى: چې جبرائيل عليه السلام له يوې ټولې دملائکو سره راکوزيږي، کوم شخص چې په عبادت مشغول وى دهغه لپاره درحمت دعاوې کوي (بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ) دخداى جل جلاله په حکم له هر خير سره راکوزيږى. په مظاهرحق کې ليکلي دى چې په دې شپه کې دملائکو پيدائشت شوى دى، دحضرت آدم عليه السلام دمادى جمع کيدل په دې شپه کې شروع شوى ده او په دې شپه په جنت کې ذرختې کرل شوې دى، ددعاو قبليدل په ډيرو احاديثو کې راغلى دى. او په يوه روايت کې راغلى دى چې په دې شپه عيسى عليه السلام اسمان ته ختلى دى او په دې شپه دبنى اسرائيلو توبه قبوله شوى ده. (سَلَامٌ هِيَ) داشپه سر تر پايه سالمه ده يعنى دفرشتو له لوري په مؤمنانو سلام وې تر دې چې يوه ټولى دملائکو ځي او بله راځي (حَتَّى مَطْلَعِ الْفَجْرِ) داټوله شپه دبرکتونو انو رحمتونو سره وى تر څو چې سپيدى راوخيژى، داسې نه چې دشپې په يوه

برخه کې برکت وی او په بله کې نه وې بلکه تر صبح صادق پورې ددې برکاتو نه ظهور وی. (فضائل رمضان المبارک ص ۳۷ ومعارف القرآن ص ۷۹۱ ټوک ۸)

**دیوه سوال ځواب**: دقدر شپه تر زرو شپو اولی بلل شوی ده ظاهره ده چې په دې زرو میاشتو کې هر کال دقدر شپه هم راځی نوحساب به څنګه کوودتفسیر علماؤ ویلی دی چې دلته له زرو میاشتو هغه مراد دی چې پکښې دقدر شپه نه وی په دې لحاظ هیڅ مشکل نشته. (معارف القرآن ص ۷۹۳ ټوک ۸)

داچې ویل کیږی چې دقدر شپه تر زرو میاشتو اولی ده، ددې مطلب دادی چې دزرو میاشتو په اندازه کښې چې څومره عبادت کیږی ددې شپې دعبادت تر دې زیات ثواب دی او څونه؟ داخدای جل جلاله ته معلومه ده کوم شی ته چې الله جل جلاله ډیر زیات ویلي وي دهغه زیاتوالی یې څه اندازه وې ددنیا دخلکو دستور دی چې یوه اندازه زیات شی ته په ډیروالی قائل وی او تر هغه یل زیات شی زیات نه بولی، یو په ظاهره ژور شی ډیر ژور بولی.یوه داخبره هم ده چې په هغه زمانه کی په عربو کی تر زرو زیات حساب نه وو لکه څنګه چې له ۱۰۰۰ زر کاله مخکی په دنیا کی د ۱۰۰ سیکړو ډیر اهمیت وو او نن؟څنګه چې قرانکریم دهغوی په ژبه وو او دهغوی له لهجې سره برابر وو بیا نوڅنګه تر زرو زیات ویلای شوای؟ ځکه یې دهغوی دحساب اخیري درجه وویله دنورې ترقی لپاره الله جل جلاله دونه وویل چې ((تر دې هم زیات)) اوس تر دې دزیادت امکان نشته .کرور ،ارب، کهرب، نیل وسنګ اومهاسنګ ټوله دی زیادت لاندی دې ګواکی چې دقدر دشپې دفضیلت هیڅ حد نشته. (محمد رفعت قاسمی غفرله)

## ایا په ټوله دنیا کښی په یوه شپه کښی دقدر شپه وی؟

**مسئله** : دمطالعو داختلاف په سبب سره په مختلفو مملکتو کی دقدر شپه په مختلفو تاریخو وی په دې کی هیڅ مشکل نشته ځکه چې په هر ځای کی دقدر دشپې تاریخ وی په همهغه شپه دقدر برکات حاصلیږی (والله سبحانه تعالی اعلم)

**مسئله**:کوم څوک چې دقدر په شپه دماخستن او سهار لمونځ په جماعت سره اداکړی بس دهمدې شپې ثواب یې پیداکړ چاچې زیات عبادت وکړ زیات ثواب ورکول کیږی .په صحیح مسلم کښی له عثمان غنی رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل: کوم شخص چې دماخستن لمونځ په جماعت سره ادا کړي ګواکی دنیمې شپې دقیام ثواب یې پیداکړ او چاچې دسهار لمونځ هم په جماعت سره اداکړ ګواکی دټولې شپې دقیام او عبادت ثواب یې حاصل کړ . (معارف القران ص ۷۹۲ توک ۸)

## دقدر دشپې معنی

دقدر معنی شرف او عظمت ده .ودې شپې ته لیلة القدر ویل ددې شپې دعظمت په وجه ده حضرت ابوبکر وراق رحمة الله علیه ویلی دی چی ودې شپې ته لیلةالقدر (دقدر شپه) ځکه ویل کیږی چې دکوم شخص تردې شپې مخکې دبې علمی په وجه هیڅ قدر او قیمت نه وو . په دې شپه دتوبې ،استغفار او عبادت په وجه دا شخص هم دقدر او شرف خاوند کیږی.

دقدر بله معنی تقدیر او حکم هم کیږی ددی معنی په اعتبار دلیلة القدر دویلو وجه داده چې په دې شپه دټول مخلوق لپاره کوم ازلې تقدیر لیکل کیږی دبنده چې کومه برخه له دې رمضان المبارک تر بله رمضانه پورې ده هغو ملائکو ته حواله کیږی کومی چی دتدبیر او تنفیذ لپاره ماموري دی ،کوم علماء کرام چې له لیلة المبارکة څخه دشعبان پنځلسمه شپه مرادوی ، دهغې تطبیق دادی چې ابتداء فیصله دامورو په اجمالی شکل په دې شپه

کيږي او تفصيلات يې دليلة القدر په شپه کوم چې درمضان المبارک په مياشت کښې ده ليکل کيږي ددې تائيد دحضرت ابن عباس رضى الله تعالى عنه په يوه قول سره کيږي ،چې الله جل جلاله دټول کال داموروفيصله دبرات په پنځلسمه شپه کوي بيا دقدر په شپه دفيصلې مطابق فرشتو ته سپارل کيږي. (تفسير مظهرى)

دامو مخکې هم ليکلې ووچې داموروو دفيصلې په دې شپه مطلب دادی چې په دې کال کی چې کوم امور نافذ کيږي ، هغه له لوح محفوظ څخه نقل کيږي او ملائکو ته حواله کيږي او اصلا خوداټول تقديرونه په ازل کښى ليکل شوي دي. (معارف القران ص۷۹۲ توک ۸)۹۳

## دقدر شپه څه ده؟

درمضان المبارک په شپو کښى يوې شپې ته دقدر شپه ويل کيږي چې ډيره دخير او برکت شپه ده په قران کريم کی دا شپه تر زرو شپو ښه بلل شوی ده زر مياشتې درې اتيا کاله او څلور مياشتې کيږي.نيکبخته ته دی هغه څوک چې داشپه په عبادت کی تيره کړی او دابرکات يې نصيب شي ګواکی درې اتيا کاله څلور مياشتې يې په عبادت کښى تيرى کړی ، او دزياتوالی يې حال نه دی معلوم چې زر مياشتې تر څو مياشتو افضل دی (دعربو په محاوره کښى ترزرو زيات عدد نه وو) الله جل جلاله په حقيقت سره ډير لوی انعام پر خپل قدرمن مخلوق کړی دی په در منثور کی له انس رضى الله تعالى عنه څخه روايت نقل شوی دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم وويل: دقدر په شپه الله جل جلاله زما پر امت يو خاص رحمت کړی دی چې پر نورو امتونو باندی نه وو په دې باره کی مختلف روايات دی چې ددې نعمت سبب څه وو. په ځينو احاديثو کی راغلی دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم دتيرو امتو عمرونو ته فکرو کړچې ډير زيات وو په دې خفه

شو چې زما دامت عمرونه ډير کم دی او په دې کم عمر کی ددومره زيات عبادت امکان نشته ، کله چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم خفه شو نو الله جل جلاله ددې مبارکې شپې برکت يې امت ته ور په برخه کړ ، که کوم نيکبخته دقدر (لس کاله يوه دقدر شپه) عبادت وکړ تردرې اتياکاله څلورو مياشتو څخه هم زياتيږی . په بعضو رواياتو کی راغلی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم دبنی اسرائيلو ديوه شخص ذکر کاوو ويې ويل چې زر مياشتی يې جهاد کړی دی داصحاب کرامو وربانده غبته پيداشوه الله جل جلاله ددوی دجبيرې لپاره داشپه ورکړه په يوه روايت کی راغلی دی نبی کريم صلی الله عليه وسلم دبنی اسرائيلو دڅلورو اشخاصو ذکر وکړ: حضرت ايوب حضرت زکريا حضرت حذقيل او حضرت يوشع عليهم السلام چې دې ټولو انبياؤ اتيا کاله دالله جل جلاله په عبادت کی تير کړی وو او ديوې زرې برابر يې هم دخدای جل جلاله نافرماني نه ده کړي.
ودی ته صحابه کرام حيران شول بيا حضرت جبرائيل عليه السلام حاضر شو او دقدر سورة يې ووايو . له دې څخه علاوه نو هم مختلف روايات شته. دداسې قسم درواياتو داختلاف وجه اکثره داکيږی چې کله دمختلفو واقعاتو وروسته کوم ايت نازل شې ټولو ته ئې نسبت کيدلای شي په هر صورت دسورة دنازليدو وجه که هر څه وی ليکن دامت محمدی صلی الله عليه وسلم لپاره دادالله جل جلاله ډير لوی نعمت دی . داهم دالله جل جلاله يوه خاصه عطيه ده او دعمل کولو توفيق هم ترهغه جل جلاله پوری موقوفه دی. (فضائل رمضان المبارک ص ۳۵ زمظاهر الحق جديد ص ۲۷۹ټوک ۷)

## دکتبې شپه

ددې شپې دفضيلت لپاره که څه هم مستقل سورة نازل شوی دی له دې سره سره دوه حديثونه دنمونې په ډول ذکر کول غواړم:

عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من قام لیلة القدر ایمانا واحتساباً غفرله ماتقدم من ذنبه (رواه بخاری ومسلم).

**ژباړه** له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل چا چی د قدر شپه له ایمان سره دعبادت په نیت وکړه له دې څخه مخکی ګناهونه ټول ورته معافیږی.

**تشریح** که چېری ددنیا کاروبارې ته دامعلومه شي چې په فلانکی میاشت کښی، مونږ ته نژدې په یوه ښار کښی یوه میله جوړیږي چې تجارت پکښی ډیره ښه ګټه کوي چې یوه روپی لس روپی ګټې او ټول کال بیاله تجارت څخه څوک خلاصیږی. تاسو فیصله وکړئ څوک به داپریږدی؟ که چېرې تاریخ ورته معلوم نه وي په ډیرو پوښتنو ضرور تاریخ معلوموي بیاهم که ورته معلوم نشي څوشپې مخکې هلته ورځې چې دازرینه موقعه راڅخه تیره نشي .اوس دنیکانو دمیلې هم دمؤمنانو لپاره یوه زرینه زمینه مساعده کړی ده ، له دومره برکته سره ددې شپې میاشت هم معلومه ده، بیاداهم معلومه ده چې په لسو اخیروکی ده ، شپه ئې ځکه نه ده معلومه کړي چې هغه څوک معلوم شي چې له خدای تعالی سره څومره محبت لری لکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم چې به ددې شپې لپاره میاشتې میاشتې اعتکافونه کول ، اوچې معلومه شي چی ددې شپې پلټونکی څومره شپې قربانوي؟ (الترغیب والترهیب ص۹۰ ج۲).

دشپې روښولو مطلب دادي چې عبادت وکړی .لمونځ ، ذکر اوداسې نور ، اوثواب دنیت مطلب ئې وي. دشپې روښولو مطلب دادي چې عبادت وکړی ،لمونځ ، ذکر اوداسی نور ، اوثواب دنیت مطلب دادي چی خاص دالله تعالی درضا لپاره کښینی نه دریا اوغرور لپاره محض عاجزې اختیار کړی خطابی علیه الرحمة وایې: چې ددې مطلب دادي چې دثواب یقین به یې وي

اوپه ارام زړه سره پرځان تکلیف راولی ، نه په قراره زړه سره ، ښکاره خبره ده چې څومره په اخلاص سره کښینی هغومره عبادت اسانه کیږی داوجه ده چې څوک دالله تعالی په محبت کښی بوخت وي دهغه په عبادت کښی هیڅ مشقت نوي. دامعلومول هم ضروري ده چې په مخکښې ، حدیث او نورو حدیثوکښی چې دګناه ذکر ده دعلماء په نزد ګناه صغیره مراد ده ځکه چې په قران کریم کښی چې کله دګناه کبیره ذکر وشي ، ورسره ضرور د (الامن تاب ) ذکر کیږی ، په دي بناء علماء کرام وایې چې ګناه کبیره بغیر له توبې څخه نه معافیږی .نوځکه کله چې په حدیث دګناه دمعافیدو ذکر راشی علمآء کرام بې په صغیره سره مقیده کوي .دتوبې حقیقت دادي چې پر تیرو ګناهونو پښیمانې اوپه آئنده کښی دنه کولو عزم که چېرې لچاڅخه ګناه کبیره وشي دهغه لپاره ضروري ده چې که دقدر شپه یابله دقبولیت زرینه موقع وي باید ضرور دخپلو بداعمالو څخه په پاک زړه سره په ټینګ عزم په زړه اوژبه سره توبهٔ وکړي ترڅوچې الله تعالی له رحمت کامله متوجه شې له صغیره او کبیره هرقسم ګناهونو څخه توبه وکاږی ترڅولوی خدای تعالی یې توبه قبوله کړي .(فضائل رمضان المبارک ص ۳۸ ).

## دملائکوراتلل

عن انس رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاکان لیلة القدر نزل جبریل فی کبکبة من الملئکة یصلون علی کل عبد قائم اوقاعد یذکرالله عزوجل ( کذا فی المشکوة ).

حضرت انس رضی الله تعالی عنه له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې دقدر په شپه حضرت جبرائیل علیه السلام دفرشتو (ملائکو) له یوې ټولۍ سره ځمکې ته راکوزیږي او دهغه شخص لپاره دخدای تعالی څخه درحمت غوښتنه کوي چې په عبادت اوذکر مشغول وي.

**تشریح** دحضرت جبرائیل علیه السلام راتګ له ملائکوسره په قران کریم کښی ثابت دي اوپه ډیرو احادیثو کښی هم په صراحت سره داخبره ذکر شوی ده چې جبرائیل علیه السلام وملائکو ته وظیفه ورکوی چې دهر ذاکر اوشاغل کور ته لاړي شې اومصافحه (روغبړ) ورسره وکړی.

دحضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه په حدیث کښی راغلی دي چې دجبرائیل علیه السلام په ویلو سره ملائکې سره جلاجلا شې اوکوم کور کوچنی . یالوی ، ځنګل اودښتی داسې چې مسلمان پکښی وي او هلته ملائکې دمصافحې لپاره نه شې ورتللای لدي څخه مراد دخیر دوعا هم ده اوپخپله روغبړ هم ځینی مراد ده ، ځکه چې فرشتې مجسم نور ده ، دنور له وجې موږ ته په نظر نه راځی محسوسیږی هم نه ، لکه څنګه چې مړه کیدونکی ته ملک الموت او نورې ملائکې راځې اوخبرې ورسره کوي ، شاید چې نیکانو خلګو ته په نظر ورځی او محسو سیږی هم. (محمدرفعت قاسمی غفرله)

مګر هغه کور ته نه داخلیږی چې پکښی سپی خنزیر یا ناوړه تصویر وي دمسلمانانو اکثره کورونه داسې دي چې دخدای تعالی لدې عظیم نعمت څخه بې برخې دي ځکه چې یوازې دخیالې ښائست لپاره تصویرونه ځړوي ځکه چې تصویر لګونکی ډیر بدبخت وي ، چې دده په سبب سره ټول کور دخدای تعالی له رحمت څخه بې برخې کوي. (فضائل رمضان ص۴۰)

## دقدردشپې دنامعلوم والې سبب

عن عبادة بن صامت قال خرج النبی صلی الله علیه وسلم لیخبرنا بلیلة القدر فتلاحی رجلان من المسلمین فقال خرجت لاخبرکم بلیلة القدر فتلاحی فلان وفلان فرفعت وعسی ان یکون خیرالکم فالتمسوها فی التاسعة والسابعة والخامسة (مشکوة شریف وبخاری).

**ژباړه**:حضرت عبادة بن صامت رضی الله تعالی عنه وایې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ددې لپاره دباندی راووتې چې موږ ته دقدر دشپې خبر راکړی لکن ددوو مسلمانانو جنګ وو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل چې زه ددې لپاره راغلی وم چې تاسو ته دشب قدر په باره کښی خبر درکړم .لکن دفلانکي اوفلانکي په مینځ کښی جنګ وو چې دهغه په وجه یې تعیین ورک شو یعنی له ذهنه یې ووتله یوازې دالله تعالی په علم کښی پاته شوه لهذا دنویشتم اوویشتم اوپنځه ویشتم په شپه کښی یې طلب کوي.

**تشریح** په دې حدیث شریف کښی درې مضامین دغور وړ دي ترټولو اهمه هغه دوو ومسلمانانو جنګ وو داداسې بدشی دي چې ددې په وجه دهمیشه لپاره دقدر شپه نامعلومه شوه یوازې دانه بلکه جنګ همیشه دډیرو برکاتو دمحرومی سبب کیږی ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم وایې چې ایا زه تاسوته تر صدقه، لمانځه اوترنورو افضل شی وښیم ؟ اصحاب کرام رضی الله تعالی عنهم ورته وویل ، هو ضرور نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل ترټولو افضل په خپل مینځ کښی ښه سلوک دي اوپه خپل مینځ کښی جنګ دین ته نقصان رسوی لکه څنګه چې په (بال صفا) سره دسرویښتان یودم صفاکیږی دخپل مینځ دجنګ په سبب سره دین همداسې صفاکیږی ( یعنی نیک اعمال ختمیږی ) نبی کریم صلی الله علیه وسلم دمسلمانانو آبرو و(عزت ) خرابول بدترین اوخبیث ترین سودبللی دي لیکن موږ دجنګ په وخت کښی نه دمسلمانو دآبرو ، نه دالله تعالی

او دهغه درسول صلی الله علیه وسلم داوامیرو لحاظ کوو ، په یوه روایت کښې راغلی دي چې دبرات په شپه دالله تعالی عام رحمت ومخلوق ته متوجه کيږي ، او په معمولی بهانو ومخلوق ته مغفرت کوي ، لیکن دوو خلکو ته مغفرت نه کیږي ، یو کافر او بل حاسد (ضد کوونکی).
په یوه بل روایت کښې راغلی دي چې درې اشخاص دي دکومو چې لمونځ دقبلیدو پخاطر دیوه بالښت په اندازه هم ترسرنه پورته کیږي ، یوله هغو څخه هغه څوک ده چې له مسلمانانو سره جنګ کوي ۔ (فضائل رمضان المبارک ص ۴۳)
بعض حضرات وايي چې له دغو دوو اشخاصو څخه چې په دې ځای کښې يې جنګ وو ، دیوه نوم عبدالله ابن ابی حذرد او دبل نوم کعب بن مالک ؤ.
( دشب قدر دنامعلوم والی ) مطلب دادي چې ددې دوو خلکو دجنګ په سبب سره زما څخه دهغه دقدر دشپې دتعین علم محوشو . له دې څخه معلومه شوه چې په خپل مینځ کښې جنګ ، نفرت او دښمنۍ کول ډیر بدشی دي ، ددې په وجه سره سړی له برکتو او نعمتو څخه بې برخې کیږي.
دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ددې وینا چې ( شاید داستاسو لپاره بهتره وي ) مطلب دادي چې دقدر شپه چې ماته متعینه شوی وه ، او اوس راڅخه هیره ده ، که چیرې ماتاسو ته ویلی واې تاسو به یوازې پر دې شپه اکتفا کړی واي اوس چې نامعلومه شوه یوازې دانه چې تاسو به ددې شپې دبیداره کولو لپاره سعې اوکوشش وکړئ بلکه طاعت اوعبادت به هم زیات وکړی ، کوم چې ښکاره ده چې ستاسو لپاره ګټه ده ۔ (مظاهر حق جدید ص ۲۸۷ ج ۲)

## دقدر دشپې دپټوالی راز

کوم شی چې ډیر قیمتي اواهم وي هغه په ډیرمحنت سره حاصلیږي ، نو دقدر دشپې په شان داسې لوی دولت څنګه بیله محنته پلاس راځي.

ځکه يې ددې شپې تاريخ نامعلومه کړ دنبی کريم صلی الله عليه وسلم قول دي چې ( عسی ان يکون خير لکم ) څه معلومه ده دتاريخ په نه معلومولو کښې به ستاسو لپاره خير وي (ابن کثير ص ۵۳۴ ج ۴)
ښکاره خبره ده که يې چېرې تاريخ معلوم شوی وای بيا به يې دومره قدراو برکت نه وای او بل داچې همداشان بيا به يې بې قدرې سخته دبدنصيبۍ او بده خبره وه مفسر قران علامه ابن کثير رح وايي چې ددې دپټوالی حکمت دادی چې ددې شپې طالب او شوقمن به دټول رمضان المبارک دعبادت اهتمام وکړی. (ابن کثير ص ۵۳۴ ټوک ۴)
که چېرې دقدر شپه معلومه وای نو ډير کوتاه طبيعته خلگو به دنورو شپو بالکل اهتمام نه وو کړی او په دې صورت کښې دقدر دشپې په لټه دډيرو شپو عبادت ور نصيب کيږی. يو حکمت يې داهم دی چې ډير خلگ له گناه څخه بغير ددې شپې اهتمام نه کوی ،دقدر دشپې دتعين په صورت کی که چېرې له چاڅخه گناه شوی وای بيا به ډيره دانديشنې خبره وای نبی کريم صلی الله عليه وسلم يوځلی مسجدته تشريف يووړ ويې ليدل چې يو صحابی ويده وو ،نبی کريم صلی الله عليه وسلم وحضرت علی رضی الله تعالی عنه ته وويل چې داويښ کړه چې اودس وکړی ،حضرت علی رضی الله تعالی عنه هغه راپورته کړ ليکن له نبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه يې پوښتنه وکړه چې ته خو دخير پکار کی ډير تلوار کوی ، تا ولی په خپله نه کړ پورته؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وويل که چېرې دې سړې زما له وينا څخه انکار کړی وای ،زما له وينا څخه انکار کفر ته مفضی کيږی .او ستا له وينا څخه انکار کفر ته نه مفضی کيږی ،نو ځکه الله جل جلاله داشپه پټه کړه خلگ دخدای جل جلاله له رحمته څخه بې برخې نه شي ، که چېرې په تعين سره يو چاگناه کړی وای ، دابه يې ډيره دنافرمانی

خبره واى ، يوه وجه داهم كيداى شي چې كه چېرې داشپه له چا څخه اتفاقا
پاته شوى واى نو په راتلونكو شپو كى به يې افسوس كاوو او دهيڅ شپې
عبادت به يې نه واى په نصيب شوى ليكن اوس خو اقلاً د رمضان المبارك
يوه يادوې شپې دهر چا په نصيب كيږى .يوه نكته داهم ده چې څومره شپې
په دې طلب كى تيرى شې ددې ټولو مستقل ثواب وركول كيږى ،له دې
څخه علاوه نورې ګټې هم لرى ، دداسې امورو په وجه كى دالله جل جلاله
عادت داسې جارى دى چې اهم شيان يې پټ كړى دى لكه اسم اعظم
.دجمعى دورځې خاص ساعت او داسې نور شيان الله جل جلاله پټ كړى
دى ، داهم ممكنه ده چې دجنګ په وجه دشب قدر تعين له مينځه تللى وى
او دنورو مصالحو مذكوروو څخه دهميشه لپاره تعين نه وى . (فضائل رمضان ص ۲۳)

## دقدر دشپې علم حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ته وركړل شوى وو

نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته دقدر دشپې علم وركړل شوى وو (ورته
معلوم وو ) هغه صلى الله عليه وسلم داصحاب كرام رضى الله عنهم ته
دخبر وركولو لپاره له خپل كور مبارك څخه راووت كله چې يې وليدل چې
ددوو مسلمانانو په مسجد نبوى كى جنګ دى دجنګ دختمولو لپاره يې
كوشش وكړ هغه وو چې له ذهن مبارك څخه يې ددې شپې تعين له مينځه
ولاړ داوو دجنګ قباحت چې په سبب سره ئې داسې زرينه موقع له لاسه
ووتله .له دې څخه معلوميږى چې دمسلمانو په مينځ كى جنګ كول خداى
جل جلاله ته ډير منفور (ناخوښ دى ) له دې سره سره له ډيرو نعمتو ا
ورحمتو څخه دبې برخې كيدو سبب ګرزى . بايد ورڅخه ځان وژغورو .
له حضرت محمد صلى الله عليه وسلم څخه دهيريدو په سبب سره بل خير
او بركت هم رامينځ ته شو ، لكه څنګه چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم

پخپله ویلی دی چې دقدر دشپې په لټولو سره دامت دپر دخیراو برکت خبره ده، او ددې شپې فکر او طلب کول یو بل مستقل نعمت دی چې که چېرې داشپه معلومه وای دانعمت به نه وای. (انوار الباری شرح البخاری ص۱۳۱توک ۲)

علامه زمخشری رح ویلی دی چې شاید دقدر دشپې دپټیدو سبب داوی چې هغه څوک چې ددې شپې په تلاش کی وی دکال دیرې شپې رونوی ترڅو یې ددې ټولوشپو عبادت په نصیب شی.بل داچې که چېرې معلومه وای خلګو به خاص په دې شپه عبادت کاوو ددېر خیر اوبرکت خاوندان کیدل به،دنورو شپو په عبادت کی به یې کوتاهی کوله. ځکه داشپه پټه شوه (عمدة القاری ص ۲۲۳ توک اول)

## ایا دقدر شپه اوس هم باقی ده

حضرت مولانا انور شاه کشمیری رح صاحب محدث دار العلوم دیوبند ویلی دی چې په حدیث کی چې ((فرفعت)) لفظ راغلی دی دلته د قدر دشپې بالکل ختمیدل ورځخه مراد نه دی بلکه دتعین علم یې پورته شو، که چېرې دقدر شپه پخپله نه وای نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم چې ددې شپې دتلاش لپاره کوم حکم کړی ددې څه فائده ده؟ (انوار الباری ص۱۳۱ توک ۲)

## پنځه شپان پټ شوی دی

دشب قدر دشپې قطعی تعین ځکه نشته . چې کوم شخص پر دې شپه خاص اکتفاء ونکړی ، په دې شپه چې یې کوم عبادت کړی وی تر زرو میاشتو په ښه بللو سره به له نورو عبادت څخه محروم شوی وای ، ځکه چې ویل به یې چې خدای جل جلاله راته داسې درجه راکړی ده چې په سبب سره یې جنت ته داخلیږم . ترڅو چې په عبادت کی سست او له الله جل جلاله څخه غافل نه شی ځکه داشپه پټه شوه .دمعلومتیا په صورت کی به خلګو دنیوی خواهشات پوره کول ، امید به یې وو چې دقدر شپې عبادت کافی

دی . دا ډیر دهلاکت خبره ده ،ځکه نو الله جل جلاله خلګ له خپلو عمرو څخه هم بې خبره کړل که چېرې چاته معلومه وای چې زه به په فلانکی تاریخ مرم ، بس د دې خواهشات به یې پوره کول او په اخیر کی به یې توبه ایستله عمر یې ځکه نامعلومه کړ چې هر انسان (مسلمان) همیشه په ویره کی وی ښه اعمال کوی ترڅو داخرت سعادت ور په برخه شی .نبی کریم صلی الله علیه وسلم ویلی دی چې پنځه شیان یې د پنځو شیانو په وجه پټ کړل؛

اول: دخلګو پر عبادت دخدای جل جلاله رضامندی ښکاره کول

دوهم: دخلګو پر ګناهونو خپل قهر او غضب ښکاره کول

دریم: وسطی لمونځ په نوزو لمونځو کی.

څلورم: خپل دوستان په عامو خلګو کی.

پنځم: د رمضان المبارک په میاشت کی دقدر شپه. (غنیة الطالبین ص ۳۸۰)

## بدنصیبه څوك دى ؟

ددنیا دخلګو په نظر خو هغه څوک ډیر ناپوه او بدنصیبه او محروم هغه څوک دی چې دکاروبار میاشت هسې بې ګټې تیروي لیکن دنبی کریم صلی الله علیه وسلم په نزد تر ټولو بد نصیبه هغه څوک دی چې دنیکیو زرینه موقع له لاسه ورکړی او هیڅ عبادت نه کوی لکه چې وایې:

عن انس رضی الله تعالی عنه قَالَ دَخَلَ رَمَضَانَ فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم اِنّ هَذَا الشَّهرَ قَدْ حَضَرَكُمْ فیه لَیْلَةٌ خَیْرٌ مِنْ اَلْفَ شَهْرٍ مَنْ حُرِمَهَا فَقَدْ حَرَمَ الْخَیْرَ کُلَّهُ وَلَایُحْرِمُ خَیْرَهَا اِلَّا مَحْرُوْمٌ . (ابن ماجه ص ۱۲۰ توک ۲)

حضرت انس رضی الله تعالی عنه روایت کوی چې یو ځلی درمضان المبارک میاشت راغله نبی کریم صلی الله علیه وسلم وویل تاسو ته دامیاشت راغله په کوم کی چې یوه شپه تر زرو میاشتو بهتره ده ، کوم

ځوک چې د دې شپې له بر کته بې برخې شو ګواکې له ټولو بر کتو بې برخې شو ، او له دې څخه محروم هغه ځوک دی چې په رښتیا محروم دی.
یوازې دایمان د کموالی او بدنصیبی خبره ده، کنه نو دیوې شپې رو ڼول څه خبره ده؟ ایا اکثره خلګ ټوله شپه ویښ نه وی ؟ ایا اتلس اتلس ساعته مسلسل خلګ په خوړلو څښلو او کارونو بوخت نه وی ؟ مګر ژړا پر دې ده چې د خدای جل جلاله درضا لپاره به ځوک پورته شی ، د مرګ مخکې ژوند لپاره خو داټول تیاری او بندوبست کوی لیکن د مرګ وروسته ژوند لپاره به ځوک تیاری وکړی؟باید ټول د مرګ لپاره تیاری وکړو او توبه برابره کړی ، چې ځوک یې نه کوی د هغه په بد بختی کی څه شک دی ؟ چې ځوک د شپیتو یا اویا و کلو د ژوند لپاره شپه او ورځ پر ځان یوه کوی په یو رنګه روزی (رزق) پیداکوی، لیکن دلکو او کروړو د ژوند لپاره نه بلکه دبې شمیره کلونو د ژوند لپاره هیڅ نه کوی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې شپې د پیداکولو لپاره د رمضان المبارک لمړی لس ورځی اعتکاف وکړ ، بیایې لس ورځی اعتکاف وکړ چی په دې شلو ورځو کی ئې شب قدر پیدا نکړ بیایې په اخیرو لس ورځو کی اعتکاف وکړاو ټول عمر یې بیا د اخیری لس ورځی اعتکاف کاوو. (رمضان څنګه دی؟ ص ۱۵۷ د مشکوة شریف په حواله ص ۱۸۲)

## څه معلومه ده چې دشپې د اخری برخه به شب قدر وي

ځینی خلګ دافکر کوی چې ټوله شپه رو ڼول مشکل کار دي ، او په لږ پور ته کیدو کښی څه فائده ده ؟ ځکه نو ټوله ویده وي. داغلطه ده ځکه چې که اکثره شپه رو ڼه کړی ، انشاء الله د دې شپې فضیلت به یې نصیب شی ، او ټوله شپه رو ڼول څه مشکل ده ؟ موږ او تاسو وینو چې په تیره روژه کښی ځو مره خلګ ژوندي ۀ خو تل نشته ، او دهغوی لپاره هغه اخیری میاشت دروژې وه ، موږ څه خبر یو چې په راتلونکی میاشت کښی به ځوک ژوندي

وي ؟ د دې لپاره که چېرې يوه يا دوې شپې رونې کړو څومره لويه خبره ده که
تو له شپه نشو رونولای اکثره حصه خو بايد رونه کړو ، او که اکثره رونبوو
بايد اخيرې حصه رونه کړو ځکه چې په دې وخت کښې په عبادت کښې
اسانتياوي او دا حصه د شپې تر لمړنۍ حصې افضله هم ده . (رمضان ختنی ده ۱۲۳)

## دخدای تعالی حکمت

که چېرې مسلسل دلسو يا پنځو شپو د رونولو حکم شوی وای ، ډېرو خلکو
به د اهمت نه وای کړی که يې کړی وای هم صحت او بدن ته ډېر تاوان ؤ.
ځکه نو الله تعالی په طاق شپو کښې ( يوويشتم ، درويشتم ) يعنی يوه شپه
استراحت او بله شپه عبادت د اتقسيم به په دا سې ډول سره کړی دې چې هم
عبادت کيدلای شی او په بله کښې استراحت او ارام کيدلای شی ځکه
نو بدن ته هم کوم نقصان نه رسيږی . (روژه مبارکه ختنی ده ۲ص ۱۵۹).

## دقدر شپه کله راځي ؟

عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله صلی الله عليه وسلم
تَحَرَّوا لَيلَةَ القَدرِ فِی الوِترِ مِنَ العَشرِ الآوَاخِرِ مِن رَمَضَان . (مشكوة شريف عن البخاری شريف)
حضرت عائشة رضی الله عنها له نبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه
روايت کوي چې ويل يې : دقدر شپه د رمضان المبارک داخيرو لسو په طاق
شپو کښې لټوئ.

**تشريح** دعلماء په نزد داخيرو لسو له يوويشتم څخه شروع کيږی عامې
مياشتی (۲۹) او يا (۳۰) شپې وي ددې حساب په مطابق د حديث له رويه ،
(۲۹ . ۲۷ . ۲۵ . ۲۳ . ۲۱ ) شپو کښی شب قدر لټول پکار ده مياشت که (۲۹) يا
(۳۰) وي فرق نه کوي.

۱۰۵ : حضرت ابوذر رضی الله تعالی عنه وايې چې ماله نبی کريم صلی الله
عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه چې دقدر شپه دنبی کريم صلی الله عليه

وسلم ترزماني خاص ده يا وروسته هم وي ؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم
وويل چې ترقيامته پورې شته بيا مې پوښتنه وکړه چې درمضان المبارک
په کومه حصه کښې ده ؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وويل په عشره او
اول ، اوعشره دوهم کښې يې تلاش کړه . بيانبی کريم صلی الله عليه وسلم
په خبرو مشغول شو چې بيا مې موقع پيدا کړه ومې پوښتل چې دعشره په
کومه برخه کښې ده . نبی کريم صلی الله عليه وسلم دومره ناراضه شو چې
نه لدې څخه مخکې دومره غصه شوی وو اونه وروسته ، اوويې ويل چې
که دالله تعالی مقصود ښکاره کول واې ولی يې پټوله بس داخير لسو په
طاق شپو کښې تلاش وکړه او نوره پوښتنه مه کوه دامام ابو حنيفة رحمه الله
قول دي چې دقدر شپه په ټول رمضان المبارک کښې دائره ده .صاحبين
وايي چې په ټول رمضان کښې يوه متعينه شپه ده خومعلومه نه ده دامام
شافعی رحمه الله راجح قول دادي چې يوويشتم په شپه زيات احتمال
پکښې ده امام مالک رحمه الله اوامام احمد حنبل رحمه الله وايي درمضان
داخېرولسو په طاق شپو دائره ده چې کله په يوه شپه او کله په بله شپه وي.
دجمهورو علماء رايې داده په اوويشتم زيات اميد دي په هرصورت دهر
شخص دخپل همت موافق په ټول کال کښې تلاش کول پکار ده ، ممکنه ده
له رمضان المبارک دباندي وي ، که دامشکل وي درمضان المبارک اخېری
طاق شپې خو ضروري ده چې زونی شی ، ښه داده چې اخېری عشره ټوله
رونه شی ، که داهم نه وي داوويشتم شپه خولازمی چې رونه شي که له
چاسره دخدای تعالی خاص رحمت ملګری شی اودانعمت يې په نصيب شی
ددنياترټولو خوښيو اولی ده که پيدانه شی بياهم له اجرڅخه خوخالی نه ده
بايد هر مسلمان ورور دماښام اوماخستن لمونځ په جماعت سره ټول کال
اداء کړي ، ممکنه چې دشپ قدر په شپه يې هم دالمونځونه په جماعت سره

وشي چې دډېرو جماعتونو ثواب به يې په نصيب شي . دخداى تعالى
څومره لوى انعام دي چې ددېن په كار كښې چې كوشش وكړى كه يې خاص
مقصود حاصل نه شي خو بيا هم دكوشش اجرور كول كيږى.
(فضائل رمضان المبارك له ص ۳۹ تر ص ۴۷).

## اووه عدد اودقدرشپه

حضرت ابن عباس رضى الله تعالى عنه وايې چې دقدر دشپې دپيداكولو
لپاره په طاق عددو كښې فكر وكړئ او اووه عدده ډېر موزون اوبرابر په
نظر راغلو . كله چې مې په اوو عددو كښې فكر وكړ راته معلومه شوه چې
اسمانونه هم اوه ځمكې هم دي ، دريابونه هم اووه دي دصفا اومروا ترمينځ
سعى هم اووه واره كيږى پر كعبه طواف هم اووه واره كيږى ، اوشيطانان هم
په اوو ډبرو ويشتل كيږى دانسانو تخليق هم پراوو اندامو شوى دى ،
دانسان رزق هم اوه دانې ده دانسان په مخكې ځارونه هم اوه دي : دوه
غوږونه . دوې سپږمې دوې سترګې اويوه خوله ، درحم حالتونه هم اووه
دي دقران كريم قرائتونه هم اوه دي سجده هم پر اوو اندامو كيږى ددوږخ
دروازې هم اوه دي ددوږخ نمونه هم اوه دي ددوږخ طبقى هم اوه دي
اصحاف كهف هم اوه دي.دعاد قوم هم په اوو شپو كښى په هوا(باد ) هلاک
شول ، يوسف عليه السلام هم اووه كاله په زندان كښى تير كړل ، ديوسف
عليه السلام په قصه كښى ذكر شوى غوايې هم اوه دانې وو ، وچكالې او
هم اوه كاله وه آبادي هم اوه كاله وه (دمصر دپاچاخوب اوديوسف عليه
السلام تعبير ته اشاره ده ) پنځه وخته لمونځونه اولس ركعته كيږى اوالله
تعالى وايې چې له حج وروسته اوه روژې ونيسئ . دنسب له مخې له اوو
قسم ښځو سره نكاح كول حرام دي نبي كريم صلى الله عليه وسلم وايې چې
كله سپي په يوه لوښې كښى خوله ووهي بايد اووه واره پريمنځل شي ،

لمرې په خاورو اوبيا په اوبو سره په سورة انا انزلنا كښې ترسلام لفظ پورې اوويشت حروف دي حضرت ايوب عليه السلام په مصيبت كښې اوه كاله مبتلاء ؤ .حضرت عائشة رضى الله عنها وايې چې كله زه نبى كريم صلى الله عليه وسلم په نكاح كولم زه داوو كلو وم اودكرمى ورځى هم اووه وي درې دپهاګڼ ورځې اوڅلور دچست ورځى دي (دا په هندي حساب سره دي ) .اوپه همدې ورځو كي ګرمې پاى ته ورسيده نبى كريم صلى الله عليه وسلم وايې چې زما دامت شهيدان هم اووه رنګه دي : (۱) چې دخداى تعالى په لاره كښى مړشى (۲) چې دطاعون له مرضه مړى شى (۳) چې دسل له مرضه مړشى (۴) چې په اوبو كښى غرق شى (۵) چې په اور كښى وسوځل شى (۶) چې داسهال (امل) په مرض مړشى (۷) هغه ښځه چې پراولاد مړه شى. الله تعالى قسم هم پر اوو شيانو كړى دي (۱) په لمر (۲) دڅاښت په وخت (۳) په سپوږمى (۴) په شپه (۵) په ورځ (۶) په اسمان (۷) په هغه ذات چې ځمكى اواسمانونه يې پيدا كړى دي ( داټول شيان اووه اووه دي ) .دحضرت موسى عليه السلام اوږدوالى هم اووه ګزه وو اودعصا اوږدوالى يې هم اووه ګزه وو.

## په زړه پورې نتيجه

لدې بيان څخه ثابته شوه چې داټول شيان الله تعالى اووه اووه پيداكړى دي نوشايد چې درمضان المبارك په اخرى عشره كښې دقدر شپه د اوويشتم په شپه وي. په قران كريم كښى د( سلم هى حتى مطلع الفجر ) كښى دهى لفظ له اوويشتم لفظ وروسته راغلى دي له دې څخه هم معلوميږى چې دقدر شپه په اوويشتم درمضان المبارك. ( غنية الطالبين ص ۳۷۸)

## د(۲۲) وويشتم په شپه دقران كريم ختمول څنګه دي ؟

**سوال** : درمضان المبارک داخیری عشره په طاق شپو کې دقدر دشپې دپلټلو حکم شوي دي. نو هر کال ددې میاشتې په اوویشتمه شپه خاص عبادت کول ددې شپې خاص قدر کول اوقرانکریم په دې شپه کی ویل بدعت دی کنه ؟ خاص په دې شپه کی زیات عبادت کول او دحافظانو کرامو دقرانکریم ختمول په دې شپه کی څنګه دي؟

**جواب** :دقدر شپه داخیری عشره په طاقو شپو کی دتلاش کولو حکم شوی دی لیکن ډیرو علماؤ له قرائنو څخه داوویشتم شپې ته ترجیح ورکړی ده او غالب ګمان هم دادی چې داوویشتم شپه ده . لیکن پردې باندی یقین کول صحیح نه دی چې نورې شپې دظن غالب پر بناء نفی کړي . که چېرې داوویشتم په تراویح کی ختم دقران کریم وشی دامستحب دی ،لیکن په یقینی توګه دا دقدر شپه بلل او نورې شپې نفی‌کول بالکل غلط دی .باید ختم هم دهمیشه لپاره په دې شپه کی التزام ونه شی ،عبادت ،تلاوت،لمونځ او په اجتماع سره په مساجدو کی ادا کول بدعت او مکروه دی. (فتاوی محمودیه ص۸۹ توک۱۱ )

## دقدر دشپې علامې

وَمِنْ اَمَارَاتِهَا اَنَّهَا لَيْلَةٌ بُلْجَةٌ صَافِيَةٌ سَاجِيَةٌ لَاَ حَارَةً وَلَاَ بَارِدَةً كَانَ فِيْهَا قَمَراً سَاطِعاً وَلَاَ يَتحِلَ اَنْ يَرْمَى بِهِ تِلْكَ اللَّيْلَةَ حَتَّى الصَّبَاحِ وَمَنْ اَمَارَاتِهَا اَنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ صَبِيْحَتُهَا لَاَ شَعَاعَ لَهَا مُسْتَوِيَةً كَاَنَّهَا القَمَرَ لَيْلَةُ الْبَدْرِ وَحَرَّمَ اللهُ عَلَى الشَّيْطَانِ اَنْ يَخْرُجَ مَعَهَا يَوْمَئذِ . (درمنثورعن احمد والبيهقى)

ژباړه: ددې شپې له نورو علاماتو سره سره یوه علامه داهم ده چې داشپه به روڼه او روښانه وی پاکه اونرمه ، نه ډیره ګرمه (توده ) نه ډیره یخه (سړه ) بلکه معتدله به وی ، ګواکی دانوارو دډیروالی له وجې به سپوږمی

روښانه وی ، په دې شپه کی ترسهاره شیطانان په ستورو نه ولی ،یوه
علامه یې داهم ده چې ددې شپې په سهار چې لمر راخیژی بیله له شعلو
څخه به وي .بالکل روښانه به وي لکه دڅوارلسم سپوږمی ، الله جل جلاله
په دې له لمرراختلو شیطان منع کوی (د نورو ورځو په خلاف ځکه چې دلمر
له راختلو سره شیطان هم ښکاره کیږي )

**تشریح:** په دې حدیث شریف کې دقدر دشپې یو څوعلامې ذکر شوي دي
چې وضاحت ته یې احتیاج نشته ، له دې څخه علاوه په ډیرو احادیثو کی
مختلفې علامې ذکر شوی ،همداشان دهغو نیکبختو له اقوالو څخه چې
ددې شپې فضیلت یې په برخه شوی دی ، ډیر مهمه علامه داده چې کله په
دې شپه سهار لمر راخیژی او بغیر له شعلو څخه راخیژی دا علامه همیشه
وی ، له دې علاوه نورې علامې ضرورې اولازمې نه دی. (فضائل رمضان ص ۴۸)
په احادیثو کی دقدر دشپې ډیرې علامې ذکر شوی دی ، په کومه شپه چې
داعلامې پیدا شوی ښکاره خبره ده چې دا دقدر شپه ده.

١- ترټولو صحیح علامه ددې شپې داده چې کله ددې شپې په سهار لمر
راخیژی بالکل داسې وی لکه دڅوارلسم سپوږمی ، تر عامو ورځو یې رڼا
یوڅه کمه وی . (عینی شرح بخاری ص ۳۲۵ ټوک ۵)
داعلامه ډیرو خلکو ازمویلې ده او همیشه پیدا کیږی.

۲- دا شپه خلاصه او روښانه وی (مسند احمد رواه العینی ص ۳۲۵)

۳- دا شپه نه ډیره گرمه نه ډیره یخه وی (ابن کثیر ص ۴۳۱ ټوک ۴)

۴- په دې شپه کی ستورې لر او برنه غورزیږی (ابن کثیر ص ۴۳۱ ټوک ۴)=۱۱۰

۵- امام ابن جریر طبری رحمه الله له بعض اکابرو څخه نقل کوی چې په
دې شپه کی هر شی په ځمکه پروت وی او سجده کوی او بیا بیرته خپل
اصل ته ردیږی (عینی ص ۳۲۵ ټوک ۵)

لیکن داشیان هرچاته نه معلومیږی که څه هم ډیره توجه ورته وکړی

۲- بعض علماؤ دتجربې له مخې ویلی دی چې په دې شپه کی دسمندرونو (دریابونو) او ځاګانو تروی اوبه خوږې وی (العرف الشذی ص ۳۲۷)

داهیڅ دحیرانتیا خبره نه ده . په دې شپه کی دخدای جل جلاله درحمتونو په لړه کښی مسلسل بارانونه هم شروع کیږی ،دانه ده ضروری چې هروخت او په هرځای کښی وی.

۷- بعضو خلګو ته یو قسم خاصه روښنائې هم په نظر راځی لیکن هغه خپل حالات لري ،داکومې خاصې علامې نه لرې باید عامو خلګو ته نه شي پیدا (رمضان څشی ده؟ص ۱۲۰)

## دقدر دشپې اعمال

عن عائشة رضی الله عنها قالت قلت یارسول الله صلی الله علیه وسلم اَرَاَیْتَ اِنْ عَلِمْتُ اَیَّ لَیْلَةٍ لَیْلَةُ الْقَدْرِ مَا اَقُوْلُ فِیْهَا قَالَ قُوْلِیْ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّیْ (ترمذی وفی المشکوة)

**ژباړه:** حضرت عائشة رضی الله عنها له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه : ای دخدای تعالی رسوله ! که چیرې ماته دقدر شپه معلومه شي باید کومه دعا وکړم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وویل: ته دادعاوکړه: ای لویه خدای جل جلاله بې شکه چې ته معاف کونکی یې اوته عفوخوښوې ، نوماته هم معافي وکړي (ترمذی مشکوة).

**تشریح** : داډیره جامعه دعا ده ، چې له الله تعالی څخه دګناهونو دمعافولو غوښتنه کیږي . اوهغه یې انشاء الله معافوي . له دې څخه ښه خبره بله کومه ده (فضائل رمضان ص ۴۹).

عبدالمطلب رضی الله تعالی عنه ته وویل : ای عباسه! ای زما قدرمنه اکا ! ایا زه ستا په وړاندی یوه دقدر وړ او قیمتي تحفه وړاندي کړم ؟آیا زه تاته یوه خاصه اومهمه خبره وکړم ؟ آیا زه ستالپاره لس کارونه اولس خدمتونه وکړم ؟ یعنی یوداسې عمل درته وښیم چې تاته لس فائدې ورسوي دایوداسې عمل ده چې په کولو سره به یې خدای تعالی ستا مخکی ، وروسته ، زړې ، نوې ، هیرې ، پیاد ، صغیره ، کبیره ، پټې ، اوښکاره ګناوې معاف کړی داعمل صلوة التسبیح دي ، ای ګرانه اکا ! که چېرې کولای شې چې هره ورځ دالمونځ وکړې ډیره ښه ده اوداکه نه وي دهرې جمعې په ورځ ، که نه نوپه کال کښی یې یوځلې کوه که داهم نه شې کولای په ټول عمر کښی خویې یوځلی ضروري وکړه (ابوداؤد ابن ماجه).

## پدي لمانځه کښی یوه خاصه باریکی

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله دصلوة تسبیح په باره کښی یوه خاصه باریکی لیکلی ده چې حاصل یې دادی چې له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه په لمانځه کښی ډیر اذکار ثابت شوي دي (خصوصا په نفلي لمونځوکښی دالله تعالی دهغو بندګانو لپاره چې ، په لمونځونو کښی داسې اذکار نشې ویلای ، ترڅو چې له دې مبارکو اذکارو څخه بې برخې نشې نو یې صلوة التسبیح لمونځ پیدا کړځکه چې په دې کښی دخدای تعالی ذکر ، تسبیح اوتحمید په زیات شمیر سره راغلی دي ، لکه څنګه چې دایوه کلمه په وار وار ویل کیږی ځکه وعامو خلګو ته مشکل نه وي.

## دصلوة التسبیح خاص تاثیر

دلمانځه په سبب سره ګناهونه معافیدل او دمعصیاتو له ناپاکۍ څخه پاکیدل په اصولي توګه له قران کریم څخه ثابتیږي: (وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّاكِرِينَ (سورة هود پاره ۱۲)
لیکن په دې تاثیر کښې چې د(صلوة التسبیح ) خاص مقام او مرتبه ده ، دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنه په پورتنې حدیث کښې ذکر شوي ده . یعنی د دې لمانځه په سبب سره الله تعالی دبنده ، مخکې ، وروسته ، زړې نوې هیرې ، یا دې ، صغیره ، کبیره پټې او ښکاره ټولې ګناوې معافوی .اوپه یوه روایت کښې راغلی دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم یوه صحابی ) حضرت عبد الله بن عمر رضی الله تعالی عنه ته دصلوة تسبیح له ښوولو وروسته وویل:

( فَإِنَّكَ لَوْ كُنْتَ أَعْظَمَ أَهْلِ الْأَرْضِ ذَنْباً غُفِرَلَكَ بِذَالِكَ ،

یعنی که ته چېرې ترټولو ګنهګار شې ، بیاهم د دې لمانځه په برکت سره به تاته الله تعالی بخښنه وکړي . (معارف الحدیث ص ۳۷۳ ج ۳)

دبعض محقیقینو علماؤ قول دي چې له دې قدراوفضیلت معلومیدلو وروسته که څوک دالمونځ نه اداء کوي معلومه ده چې له دې سرې سره ددین قدر نشته . (شامی علم الفقه ص ۴۹ ج ۲).

## دصلوة التسبیح ثواب عام دي

**سوال**: دصلوة التسبیح ثواب لکه څرنګه ، چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل اکا حضرت عباس رضی الله تعالی عنه ته ویلي دي آیا نورو مسلمانانو ته هم داسې ده که نه ؟

**جواب**: په حدیث شریف کښې راغلي دي ( اِنَّمَا الاَعْمَالُ بِالنِّيَّات ).
مشکوة شریف کتاب الایمان )

بېشکه عملونه په نیتونو سره دي ، که چېرې څوک خاص دخدای تعالی درضالپاره دالمونځ وکړي ، الله تعالی هرومرو ثواب ورکوي لکه څنګه چې حضرت عباس رضی الله تعالی عنه ته تعلیم ورکړل شوی دي دادهغه صلی الله علیه وسلم خصوصیت نه وو ، لکه څرنګه چې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دنورو دعا و اواعمالو تعلیم عام وو. (فتاوی دارالعلوم ۳۱۳ ج ۴).

## دصلوة التسبیح جماعت

دنفلو لمونځو جمع که صلوة التسبیح یابل نفل وي په خاصه غوښتنه اواهتمام سره ئي کول مکروه دي. (فتاوی دارالعلوم ص ۳۱۳ ج ۴ په حواله درمختار ص ۳۲۲ ترک باب الوتر والنوافل)

## دتعلیم په غرض جماعت کول

**سوال** : که درمضان المبارک په اخېري جمعه کښې صلوة التسبیح په جماعت سره وشي ددې شرعي حکم څه دي ؟ امام داوایي چې جاهل ( ناخبره ) خلک صلوة التسبیح نه شي کولای ، ځکه نو دامام په متابعت ورته ثواب ورکول کیږي.

**ځواب**: ددې هیڅ اصل نشته ، په دې سره دقضاشوو لمونځوکفاره نه کیږي دامام دافکر غلط دي ، داعمل بدعت دي. (فتاوای دارالعلوم ص ۳۱۴ ج ۴).

## په دې لمانځه کښې دلاس نیولو کیفیت

**سوال** : دصلوة التسبیح په قومه کښې لاس ترنامه لاندې نیول کیږي او که هسې پرېښودل کیږي ؟

**ځواب**: خلاص نیول هم رواج دي . (فتاوی دارالعلوم ص ۳۱۳ ج ۴)

## دصلوة التسبیح طریقه

صلوة التسبیح څلور رکعته له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه منقول دي اولی داده چې څلور سره په یوه سلام سره وشي ، که په دوو سلامو سره

وشي بياهم روا ده يعنې په يوه نيت سره څلور ركعته هم كولاى شي اودوه ركعته هم كولاى شي . په هرركعت كښې پنځه اويا (۷۵) واره سبحان الله ويل كيږي چې په ټول لمانځه كښې دري سوه واره كيږي . دلمانځه كولو ترتيب يې دادي چې نيت وكړى ( نويت ان اصلى اربع ركعات صلوٰة التسبيح ) يا په پښتو داسې ووايې چې نيت كوم دڅلورو ركعتو لمونځ دصلوٰة التسبيح ) يا په زړه كښې دافكر وكړي چې په ژبه ويلو ته ضرورت نشته . تكبير تحريمه دي ووايې لاسونه دي ونيسي ( سبحنك اللهم دي بشپړه ووايې ، بيا دې بغير له لاسو خلاصولو پنځلس واره داكلمه ووايې ( سبحان الله والحمد لله ولااله الا الله والله اكبر بيا دي اعوذ بالله اوبسم الله او الحمد لله بشپړه ووايي يوسورة دي هم ورسره ووايې بيا دي لس ځله همدا كلمه ووايې بيا دې ركوع وكړي . اوپه قومه كښې دې له سمع الله لمن حمده اوربنالک الحمد وروسته لس ځله ووايي بيا دې په لمړۍ سجده جلسه اودوهمه سجده كښى لس لس ځله ووايى بيا په دوهم ركعت كښى ترالحمد لله مخكې پنځلس واره اوترالحمد اوسورة وروسته دې هم لس واره ووايي بيا په ركوع ، قومه دواړو سجدو اوجلسه كښى لس لس ځله.

په يوه روايت كښې راغلي دي چې له سبحانک اللهم وروسته داكلمه نه ويل كيږي بلكه له الحمد لله اوسورة وروسته پنځلس ځله اوله دوهمې سجدې وروسته كښينستل او لس ځله دي ووايې اوپه دوهم ركعت كښې هم له الحمد لله اوسورة وروسته پنځلس واره اوله التحيات څخه وروسته لس واره ويل كيږي . همداشان په دريم اوڅلورم ركعت كښې هم له درود شريف څخه وروسته لس واره ، نورې تسبيح په خپل ځاى كښې ويل كيږي . دادواړې طريقې په ترمذي كښې ذكر شوي دي . هرروايت چې دچاخوښ

وي عمل پرې کولای شي اواولی داده چې کله پریوه روایت اوکله پربل روایت عمل وکړي . (شامی)

## دتسبیحاتو دحساب طریقه

ددې لمانځه تسبیحات څنګه په یوخاص عددسره پکار دي څکه چې په ولاړې کښې (۲۵،۱۵) څله ویل کیږي اوپه نورو ځایو کښې لس لس ځله څکه نودحساب ضرورت دي که چیرې فکر دحساب لورته شي په لمانځه کښې خشوع له مینځه ځي څکه نوفقهاؤ کرامو ویلي دي چې دحساب لپاره کومه علامه پکار ده مثلا چې یوځل بې ووایې پریوه ګوته دي زور کوي همداشان دې تول شمیرپوره کوي که څوک بیله له کومې علامې څخه تول تسبیح په ذهن کښې تیولای شي په دې شرط چې نور لمونځ ترینه هیرنه شي . ډیره ښه ده . (شامی . علم الفقه ص۵ ج۲).

## که ئې په لمانځه کښې تسبیح هیرې شي ؟

که چیرې تسبیح په یوه ځای کښې یوڅه هیر شي ، په بل داسې ځای کښې باید وویل شي چې ددغه ځای په مثال وي ، په دې شرط چې دادوهم ځای دې ددې تسبیحاتو په ویلو سره ترمخکې لوی نه شي او ددې لویه دل ترمخکنې ځای منع وي . مثلا : قومه لویه دل ترركوع منع ده یعنې کومې تسبیح چې په رکوع کښې پاتې شي په قومه کښې نه ویل کیږي . بلکه په لمړنی سجده کښې ویل کیږي دجلسې لویه دل ترسجدو منع ده نوڅکه دسجدې تسبیح چې پاته شي په جلسه کښې نه ویل کیږي ، باید په بله سجده کښې وویل شي . (علم الفقه ص۵۰ ج۲).

په صلوة تسبیح کښې که په یوه رکن کښې تسبیح پاته شي په بل ځای کښې دي ووایې ، لکن په رکوع کښې که چیرې تسبیح پاته شي په قومه کښې

دې نه وايي بلکه په بله سجده کښې دې وو ايي ځکه قومه او جلسه په نورو تسبيح ويلو سره لوېږي. (فتاوی رحيميه ص۲۴۲ ج۱)

تـــمت بـــالخيـــر

اللهم وفقنا بعمل يحبک فی ليلة القدر و البراءة ايمانا واحتسابا بحرمة سيد الانبياء والمرسلين والصلوة والسلام عليه وعلی اله وازواجه واصحابه واتباعه الی يوم القيامة والذين آمين يارب العالمين.

محمد رفعت قاسمی غفرله مدرس دار العلوم ديوبند (انڈيا)

مؤرخه (۲۰) رجب (۱۴۱۲) هجری.

مطابق (۲۶) جنوری (۱۹۹۲) عيسوی.

دژباړې چای: (۹) رجب (۱۴۲۷)

دپنج شنبې ورځ داګست (۲۰۰۲\۸\۳)

لويه خدايه جل جلاله ددې کتاب مؤلف، مترجم، ليکونکي، تصحيح کونکي، چاپونکي، خرڅونکي، اخيستونکي، کتونکي، بل ته ښوونکي، رسونکي اوچې په هره برخه کې ئي کوشش کړي داټولو ته همدارنګه دهغوی موراوپلار، استاذانو، قريبانو او ټولو مسلمانانو ته په خپل خاص رحم هره شپه درحمت نظر وکړي اوهر د شپه ئي شب قدر وګرزوي. ترڅو چې ستارضااوبياهم ستارضائي نصيب شي، ددې ټولو کارونو توان او توفيق هم تاراکړي. اوتالره دي داسې حمد اوستاينه وي چې له تاسوا بل چانه ده کړي اوستاپر هغه بنده اودده پر ملګرو کورنۍ اودوستانو دي صلوة اوسلام وي چې ستا ترټولو زيات خوښ دي او دهغه شفاعت مونصيب کړي. امين يارب العلمين

*دنورالقرآن اداري خادم ستاسو ديني ورور*

*ابوخالد مولوی عبدالاحد*

# دلاس ته راوړلو ځايونه

- په خپله مکتبه رشيديه کويټه
- مکتبة العرفان کانسي روډ کويټه
- مکتبه محمديه کانسي روډ کويټه
- مکتبه نورالقرآن پښتون اباد خدايداد چوک کويټه
- اسلامي کتاب گهر ستلائٹ ټاؤن گول مسجد
- کليم استېشنرز مسلم باغ
- مکتبه نشرالقرآن نعيم مارکيټ قلعه سيف الله
- مکتبه عبدالعزيز ژوب
- مکتبه شاه محمد ژوب
- جديد کتب خانه وانه
- الفريدي کتب خانه خانوزئي
- مکتبه محموديه نزد ډاکټر نسيم کلينيک پښين
- مکتبه اسلاميه پښين
- مکتبه رشيديه لورلائي
- مکتبه سراج الدين دکی
- طالب جنرل سټور دکی
- ضياء القران کتب خانه بوغره روډ چمن
- مکتبه حقانيه بوغره روډ چمن
- اسلامي کتب خانه تاج مير روډ چمن
- مکتبه علوم اسلاميه تاج مير روډ چمن
- دارالاخلاص محله جنگي پيښور
- مکتبه غفاريه ارگ بازار قندهار
- مکتبه رشيديه سنگين بازار هلمند